د افغانستان اسلامي جمهوريت
لوړو زده کړو وزارت
ننګرهار پوهنتون
ښوونې او روزنې پوهنځی
پښتو څانګه

# د خوشحال خان خټک په غزلو کې د تشبیه ډولونه

ليکوال او څېړونکی: پوهنمل محمد ابراهيم (همکار)
لارښود استاد : پوهاند ډاکتر زيورالدين (زيور)

کال ۱۳۸۸ ل

# د پیل خبرې

د الله (ج) ډېر شکر دی چې یوځل بیا یې د پښتو ادب مسلکي غړو ، لارویو او مینه والو ته د یو علمي اثر د لیکلو ځواک را و باښه.

د لوړو زده کړو د وزارت د کړنلارې پر بنسټ د پوهنتون په علمي کدر کې شامل هر غړی د علمي ترفیع د لوړ والي لپاره یوه څېړنیزه موضوع د لارښود استاد تر نظر لاندې دیوې رسالې په بڼه بشپړوي.

د ننګرهار پوهنتون د ښوونې او روزنې پوهنځي د پښتو څانګې د پرېکړې پر بنسټ ماته له پوهنیارۍ څخه د پوهنملۍ علمي رتبې ته د لوړېدو لپاره د یو شرط په توګه (د خوشحال خان خټک په غزلو کې د تشبېه ډولونه) تر سرلیک لاندې څېړنیزه موضوع د محترم پوهاند ډاکټر زبور الدین زبور تر لارښوونې لاندې غوره کړه. زما په اند په پښتو ادبیاتو کې لا تر اوسه په دې اړه چا د علمي رتبې د لوړېدو په موخه کوم اثر نه دی لیکلی ، دا چې نوموړې موضوع په پښتو څانګو کې د یو اساسي مضمون په توګه تدرېسېږي او له بلې خوا چا پرې کار هم نه دی کړی نو غوره مې وګڼله چې زه پرې خپله څېړنیزه هڅه پیل کړم او د پښتو ادب مینه والو او لارویو ته یوه ډیوه په لاس ورکړم.

په دې څېړنه کې ما کوښښ کړی دی ، هغه څه چې لا تر اوسه په اکاډمیکه توګه په پښتو ادب کې څېړل شوي نه و زه یې وڅېړم او په زړه پورې اسانه او څرګندې بېلګې یې را پیدا کړم. په ټولیزه توګه په دې اثر کې د پیل خبرې ، سریزه ، د خوشحال خان خټک لنډ ژوند لید ، د بیان لغوي او اصطلاحي معناوې ، د بیان موضوع ، د بیان د علم ګټې ، د بیان درې ګونې څانګې ، سمبول ، د تشبېه لغوي او اصطلاحي معناوې ، د تشبېه رکنونه ، د وجه شبه بېلا بېل ډولونه ، د تشبېه زاویه ، د تشبېه غرض ، دتشبېه ارزښت ، تشبېه په ورځنیو خبرو کې ، د تشبېه بېلا بېل ډولونه ، پایله ، وړاندیزونه او ماخذونه راوړل شوي دي. د خپل علمي توان په اندازه مې کوښښ کړی دی چې هره برخه په پوره ډول وڅېړم.

د پورته موضوع د بشپړولو په لړ کې زه د خپل لارښود استاد محترم پوهاند ډاکټر زبور الدین (زبور) له سلا او مشورو څخه خورا ډېر خوښ یم ، مننه ترې کوم

چې وخت پر وخت يې خپلې نېکې ، علمي او ښوونيزې مشورې له ما څخه نه دي سمپولي ، په ورين تندي او ځوان احساس يې زما لار ښوونه کړې ده .
د ښاغلي پوهنمل فضل ولي (ناګار ) کور ودان چې ده هم په خپلو لازمو مشورو نازولی يم.
همدارنګه د خپلې څانګې له ټولو استادانو ، په ځانګړي توګه ښاغليو پوهنيار سيد غني (غني ) او پوهنيار علا و الدين (حسام ) څخه ډېره مننه چې د موضوع په ټاکلو او په اړوند يې له خپلو مشورو لرې نه يم ساتلی او په پای کې هغه ښاغلي هم په نېکې دعا سره يادوم چې ددې اثر په ليکلو کې ما د دوی له اثارو څخه ګټه اخيستې ده.

په درنښت
پوهنيار محمد ابراهيم (همکار )

يادوونه
ګرانو لوستونکو که تاسې له فهرست څخه موضوع پيدا کوئ هيله ده چې( ۹ )مخه د فهرست له شمېرې سره جمع کړئ د اړوندې موضوع مخ به پيدا کړئ. ځکه چې د فهرست شمېره له سريزې څخه پيل شوې ده.
درنښت

فهرست

عنوان مخ

سریزه

د بیان علم درې ګونې څانګې ، چې په راتلونکو مخونو کې پرې بحث شوی دی ، د ژبې او لیک د خوږوالي ، په زړه پورې والي ، څرګندتیا او د بلاغت او فصاحت په ګانه د ښکلي کولو یو اساسي شرط دی ، چې ددې علم لومړی اسانه او روانه څانګه (تشبیه ) ده. عام وګړي ، شاعران او هغه کسان چې په ولس کې د ټوکو ټکالو طبع لري پخپلو خبرو کې له تشبیه څخه کار اخلي. هغه څوک چې په چاپوري ملنډې وهي یا د هغه بدي بیانوي کله کله پکې د وجه شبه د تضاد مسئله رامنځ ته شي. لکه: یو څوک ډېر غبي او نا لایق دی ؛ نو موږ ورته (افلاتون ) کلمه کار وو ، چې افلاتون د خپل وخت ډېرځیرک ، هوښیار او مشهور فیلسوف و ؛ خو دلته د نالایق او افلاتون تر منځ د وجه شبه تضاد د خلکو د خندا سبب ګرځي. یعنې افلاتون په عقل، پوهه کې مشهور و او دی په جهالت او بې عقلۍ کې هماغومره شهرت ته رسېدلای دی.

پورته ذهنیت مخاطب ته ورکول د تشبیه کمال دی ، ځکه نو ددې علم د پوهانو نظر په دې خوا راواوښت او وخت په وخت یې پکې بکر اثار ولیکل ، چې ددې لړۍ په کړیو کې ما هم ( د خوشحال خان خټک په غزلو کې د تشبیه ډولونه ) تر سرلیک لاندې یوه کړۍ ور زیاته کړه.

خوشحال خان خټک د پښتون قوم د ژوندي پاتې کېدو لپاره د الله(ج) له خوا ورکړه ده. دی د پښتو ادب په تاریخ کې د دویمې دورې د دویم پړاو هغه اتل دی چې هم یې په توره او هم یې په قلم پښتانه د نړۍ پر مخ وځلول. ده د خپلې تورې او قلم کار یوازې د الله(ج) د رضا له مخې خپل قوم ته په شعوري ډول وقف کړ ، نو ځکه یې دا احساس د بې احساسه پښتنو پر بنسټ را اوچت شوی او بې اختیاره یې له خولې او قلم راووتل:

زه یې چالره وهم قدر یې چا زده
پــــه اور وسېزه دا تورې قلمونه
(٣٦م ٥٨١ )

خو خبره داسې نه ده چې ګنې ده سمدلاسه خپله توره په لهاړو او قلم په دیوات کې ایښی دی ، بلکې بیا یې هم خپل هدف پر مخ وړی او یو ځل یې بیا خپلو ادبي هڅو ته په پام له خولې او قلمه دا بیت راووت:

درست دیوان مې لکه باغ د عالم ګنج دی
پکې هر رنګه ګلونه هر نهال
(۳۵ م ۳۹۸)

خوشحال خان خټک خو خپله دعوه وکړه خو د ثبوت لپاره یې کار په کار دی ، همدا لامل و چې ما دده په غزلو کې د تشبېه په ډولونو خپل څېړنیز کار پېل کړ ، دا چې په دې وخت کې ادب هم پوره پرمختګ کړی دی ما هم د عربي ، دري ، اردو او پښتو معتبرو اثارو څخه په ګټې اخیستنې د تشبېه هغه ټول ډولونه پېدا کړل ، چې نن په ادب او ادبیاتو کې دود دي. د نوموړي دا خبره چې (پکې هر رنګه ګلونه هر نهال) د تشبېه په اړه بالکل د کمال تر حده ثابته ده.
د نوموړي د غزلو تقریباً په (۲۱۵۰) بیتونو کې تشبېه راغلې ده ، دلته ما د خپلې څېړنې له مخې د خوشحال خټک د مختلفو اثارو له (غزلو) څخه هغه بیتونه راخیستي دي، چې زما د موضوع په بشپړوالي کې یې په څرګند ډول تړاو لاره ، د هرې ټاکلې تشبېه د موضوع د څرګندولو لپاره تر هر بیت وروسته مشخصه هماغه یوه موضوع روښانه شوې ده ، ځکه که موږ په یو بیت کې د یوې تشبېه په اړه هر اړخیزه لیکنه وکړو اصل موضوع پکې ورکېده او هم د لوستونکو لپاره د مضمون د تنوع د له منځه تلو چانس ډېر و.
د څېړنې په لړ کې که د نور شاعرانو د بېلګو راوړو ته اړتیا پېښه شوې ده او ما راوړي دي؛ نو دا به د هغې موضوع د ښه وضاحت لپاره وي، لکه د سمبولونو یا د تشبېه دنوي کو لو په برخه کې یا د مردودې تشبېه د بېلګې په برخه کې د ناچارۍ په وجه مې د بل شاعر یو بیت بېلګه کړې ده ، ځکه د خوشحال په غزلو کې د مردودې تشبېه بېلګه زما تر سترګو نشوه.

دا چې دري او پښتو زموږ رسمي ژبې دي نو په ځينو ځايو کې مې د دري ليکوالو نظرونه کټ مټ په دري ژبه را اخيستي دي او عربي او اردو مې راژباړلي دي. پټه دې پاتې نه وي د دري جملې د ميوند په فنټ کې ليکل شوي ، چې له پښتو جملو سره يې توپير وشي.
د ماخذونو ترتيب مې د ابجدو په بڼه راوړی دی ، همدارنګه د ځينو اثارو د چاپ نېټه نه ده څرګنده؛ نو ځکه يې د چاپ نېټه راوړل شوې نه ده.
د اثر د ليکلو پر وخت مې له ساده والي څخه کار اخيستی دی چې هر څوک ترې د خپلې علمي کچې په اندازه ګټه واخلي.
د لا څرګندولو لپاره تر ځانګړو څنګيزو سرليکونو لاندې د اثر په اړه خپل هدفونه ، تېر ماخذونو ته کتنه ، مواد او کړنلار راوړم:

- د نوموړي اثر د ليکلو هدفونه (موخې):

۱ - د مسلک له مخې محصلانو ، مسلکي غړو او مينه والو ته د تشبيه په اړه درسي مواد په لاس ورکول.
۲ - په پښتو ادب کې د خوشحال د غزلو په اړه لومړی اثر دی.
۳ – پښتو ادب د تشبيه له مخې له ګاونډيو ژبو سره برابرول.
٤ –د ځانګې ضرورت او موافقه په پام کې نيول.
٥ – نورو ليکوالو او کره کتونکو ته د نورو شاعرانو په دې اړخ (تشبيه) کې لار پرانستل.
٦ –د خوشحال خان خټک د عوه (چې زما په شاعرۍ کې هر رنګه ګلونه او ونې شته ) ثبوت ته رسول.
٧ –د ذکر شوي اثر ليکنه له پوهنيارۍ علمي رتبې څخه پوهنملۍ علمي رتبې ته د لوړېدو په خاطر د يو شرط په توګه د پښتو ځانګې له خوا راسپارل او سرته رسول.

- تېرو ماخذونو ته کتنه:

د نوموړي اثر د ماخذونو په اړه مې خپل شخصي کتابتون ، د پوهنځي او پوهنتون کتابتون ، د ننګرهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست له کتابتون څخه ګټه اخيستې ده. هغه عربي ، دري ،اردو او پښتو اثار چې په اکاډميکه توګه د

لاربنوونو او نظرونو په برخه کې ترې استفاده شوې ده په لنډه توګه د لیکوال او اثر د نوم او نېټې په یادونه راوړم:

- د السید احمد الهاشمي ، جواهر البلاغة فی المعانی و البیان و البدیع اثر، چې په عربي ژبه لیکل شوی لومړی چاپ یې په(۱۳۵۸ هـ) د مصر په الاعتماد بشارع حسن الاکبر مطبعه کې شوی او څلورم ځل په(۱۳٦۹ ) د ایران د قم ښار د المصطفوی نومې خپرندویې ټولنې خپور کړی دی، چې ماله همدغه ایراني چاپ څنې استفاده کړې ده.
- د کامل احمد نژاد ، فنون ادبی ،چې پر (۱۳۸۲ ل ) کال په ایران کې چاپ شوی دی.
- د جلال الدین همایي، فنون بلاغت و صناعات ادبي ، چې پر (۱۳۷۰ل) کال په ایران کې چاپ دی.
- د محمد علوی مقدم او رضا اشرفزاده ، معاني و بیان ، چې پر (۱۳۸٤ ل) کال په ایران کې چاپ دی.
- د سیروس شمیسا ، بیان و معاني، چې پر (۱۳۸۳ ل ) کال په ایران کې چاپ شوی دی.
- د محمد رضا شفیعي کدکني ، صورخیال در شعر فارسي ، چې پر (۱۳٦۸ ل ) کا په کابل کې چاپ شوی دی.
- د عبدالقیوم قویم ، فنون ادبي ، چې په کابل پوهنتون کې چاپ شوی دی.
- د محمد طاهر فاروقي ، فصاحت و بلاغت ، چې پر (۱۹۵۹ ع) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د عبدالروف بېنوا ، ادبي فنون ، چې پر (۱۳۲٦ ل ) کال په کابل کې چاپ شوی دی.
- د سمندر بدرشو ، د ادب مناره ، چې پر ( ۱۹۵۸ ع ) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د فضل محمد ، ادبي ارمغان ، چې پر (۱۳۸۳ ل ) کال په کندهار کې چاپ شوی دی.

- د مشتاق مجروح یوسفزي ، زرګانی ، چې پر (۱۹۹۸ع) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د سید تسنیم الحق کاکا خېل ، روح ادب ، چې پر (۱۹۸۷ ع) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د عبد الرحیم مسلم دوست ، خوږه ژبه ، چې پر (۱۳۷۹ ل ) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د صدیق الله رښتین ، پښتو ګرامر ، چې پر ( ۱۳۷۲ ل) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.
- د مجاور احمد زیار ، پښتو پښویه ، چې پر (۱۳۸۲ ل) کال په پېښور کې چاپ شوی دی.

له پورتنیو کومو کتابونو څخه چې یادونه وشوه هر یو مې په پوره ډول لوستی خو زما د اثر په څېر په نوموړو اثارو کې داسې کومه ورته څېړنه نه ده شوې. ما د خپل اثر په بشپړولو کې له پورته ماخذونو څخه یوازې د تیورۍ په برخه استفاده کړې ده او بیا مې د خوشحال خان خټک په غزلو کې د څېړنیز مېتود له مخې پلټلي دي.

د خوشحال خان خټک له هغو ټولو غزلو څخه چې د کابل او پېښور په چاپ شویو کلیاتو کې راغلي دي ، د ماخذ په توګه د بیتونو په غوره والي کې ترې استفاده شوې ده او همدارنګه خواره واره نور اثار ، چې د موضوع په بشپړولو کې یې راسره لاس کړی دی هم د ماخذ په توګه ګټه اخیستل شوې ده .

وخت په وخت د مسلکي استادانو مشوره په ځانګړې توګه د لارښود استاد علمي او ښوونیزې مشورې مې په پام کې نیولې دي.

مواد او کړنلار:

د اثر د ليکلو په اړه د ځانګې ، لارښود استاد او د لوړو زده کړو د انسجام او امور اکاډميک موافقې له تر لاسه کولو وروسته مې خپل کار په لاندې توګه پيل او بشپړ کړ:

هغه ټول کتابونه چې د موضوع په اړه کره نظرونه او لارښووني تري لاسته راوړل شوي، له مختلفو کتابتونونو څخه تر لاسه کړل ، حتی ځينې سايډونه (برېښپاڼې) مې هم پسې وکتلې؛ خو هلته چې کوم مواد موجود و له ماسره يې اصل کتابونه په واک کې وو ، نو ځکه مې کتابونو ته ترجيح ورکړه.

له نوموړو کتابونو څخه مې د تشبيه په اړه اصطلاحګانې د يو فهرست په بڼه ترتيب او منظم کړې او بيا مې د هرې اصطلاح لپاره کره، څرګند او اسانه تعريفونه وليکل. تر دې کار وروسته مې د خوشحال خان خټک هغه اثار وکتل، چې دده غزلې پکې چاپ شوې وې ، د هرې غزلې په هر بيت کې مې سوچ کړی که د تشبيه ډول راته معلوم شوی؛ نو هماغه اصطلاح مې ورته ليکلې او که زړه نا زړه به وم نو بيا مې يوازې تشبيه ورته ليکلې ، تر دې وروسته مې دا بيتونه په يوه کتابچه کې راټول کړي ،تر تشخيص وروسته مې بيا د فهرست په پام کې نيولو سره کټګوري کړي او هر بيت، چې د کومې اصطلاح لپاره پوره په څرګند ډول جوړ و هغه مې ورته بېلګه کړې ده.

کله چې دا برخه پای ته ورسېده خپل نظر مې په بيتونو کې د تشبيه او تعريف په اړوند له نور هغو استادانو ، چې په دې اړه يې پوهه لرله شريکا وه او په پای کې مې له لارښود استاد سره د لا کره والي په موخه مشوره کوله.

د يوې اصطلاح لپاره يوه بېلګه هم راوړل شوې ده او د اکثرو اصطلاحګانو لپاره تريوې ډېرې بېلګې راوړل شوي دي. د هرې اصطلاح اړوند شرحه د هماغې اصطلاح د بېلګې تر ذکر وروسته راوړل شوې د ه.

تر ډېره حده مې کوښښ کړی دی، چې موضوع سيستماتيکه وڅېړم او هم اړوند عنوانونه سيستماتيکه بڼه ولري ، لومړی لوی عنوانونه ، بيا څنګيز عنوانونه او فرعي عنوانونه راوړل شوي دي ، چې موضوع لوستونکو ته لا روښانه وي.

د موضوع په اړه د موضوع پېل ، منځ او پای په پام کې نيول شوی دی.

په پای کې باید ووایم ، چې د لوړو زده کړو وزارت هغه لاربنود ، چې د علمي ترفیعاتو لپاره د اصلي اثر د موضع د غوراوي او تهیه کولو لارې چارې پکې ښودل شوي او په (۱۳۸۸ل) کال رسماً پوهنتونونو ته لېږل شوی دی ددې اثر د لیکلو پر وخت په پام کې نیول شوی دی. په پای کې مو په دعاګانو نمانځم.

په درنښت

## د خوشحال خان ختک لنډه پېژندنه

د خوشحال خان ختک کورنۍ:

د کوهاټ ضلع، د ختکو کور دی ، یعنې د ختکو لویه برخه پر کوهاټ پرته ده ، په کوهاټ کې د ختکو دوه لوی ښاخونه دي ، یو یې بولاق او بل یې تری دی. د خوشحال ختک د غور نیکه نوم اکوړي و ، چې په تری ختک پورې یې تړاو درلود. د ملک اکوړ په وخت کې هم د ختکو لویه برخه پر کوهاټ پرته وه ، خو ملک اکوړی له کوهاټه راغلی او د اټک پر خوا وشا دهغې بادشاهي لارې پر غاړه اباد شو، چې د اټک څخه د نوښار پر لور پېښور ته غزېدلې ده ، داسې ښکاري چې په هغه وخت کې هم د نوښار او اټک تر منځه ختک اباد و او ددې ختکو او د هغو ختکو چې له ملک اکوړي سره له کوهاټه راغلي وو، اکوړی مشر شو اکوړي د سرای په نامه د مغلو د بادشاهي سړک پر غاړه یو کلی اباد کړ ، چې تر ننه پورې اباد دی او د سرای اکوړي په نامه مشهور دی.

اکبر بادشاه چې په دویم ځل دروه د کوهستاني سیمې په لور راغی نو د هغه جرنیل مان سنګهـ او نورو معتمدینو ورسره د ملک اکوړي پېژند ګلوي وکړه، مان سنګهـ بادشاه ته وویل چې دا ملک په دې سیمه کې یو با رسوخه سړی دی. که بادشاه سلامت ده ته د اټک او پېښور ترمنځه د بادشاهي سړک ساتنه ورپه غاړه کړي، نو دی به دا کار په ښه شان سرته ورسوي. په دې وخت کې یو سفزو به د اټک په بادشاهي لارو چپاوونه وهل او قافلې به یې لوټلې، چې پر سړک امن نه و . بادشاه ته وویل شول چې د ملک اکوړي او د هغه د قبېلې له یوسفزو سره دښمني ده په دې بنسټ د خپل ذاتي او قبایلي غرضونو د سرته رسولو لپاره به هم ملک اکوړی په اخلاص سره د سړک ساتنه کوي. بادشاه ومنله او ملک اکوړي ته یې د نوښار او اټک تر منځه سیمه د جاګیر په ډول ورکړه ، پر دې سربېره ملک اکوړي ته په بادشاهي لار د محصول ټولولو حق هم ورکړل شو په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره د ملک اکوړي له شهرت سره سم د ختک قبیلې نوم هم یاد شو. ګنې تر اوسه پورې

دومره په نوموركي حالت كې پرته وه، چې په بابر نامه كې د پښتنو د ټولو لويو قبيلو يادونه كړې ده خو خټک يې وركې نه دي ياد كړي. (۳۲ م م ۸ او ۹)

ملک اكوړی د درويش عرف چنجو زوی ، لومړی خټک و چې شهرت يې بياموند او د خپل خدای (ج) وركړي استعداد او قابليت له امله يې د جلال الدين اكبر توجه جلب كړه. ده ته ملک اكو هم وايي.

دی تری خټک و او د دوست محمد كامل د څېړنو له مخې د ټيري په توابعو پورې اړوند د كربوغې او سپدونكی و ، چې له خپلو خپلوانو سره د خفګان په وجه له هغه ځايه (خوړې) ته راغی او له خپل ټولي سره به د سونيالۍ په دره كې په چپاوونو مشغول و.

اما پرېشان خټک د منشي ګوپالداس د تاريخ ضلع پشاور د (۳۰۶-۳۰۸) مخونو په حواله وايي چې ملک اكوړ خان له كربوغې څخه نه و، بلكې د ځوترې (ځوتره) اوسېدونكی و او له هغه ځايه يې كوچ كړی دی. (۱۰ م م ۹ او ۱۰)

خوشحال خان خټک د سرای اكوړه خټک په اړه وايي:

رحمت په اكوړي شه چې يې ونيوه ځای سرای
چې ښه فهم يې وكړې باور وكړه ځای دی ځای
تور غر يې د هوډي دی تر تېراه پورې سم تللی
نيلاب و لنډي دواړو عجب سرا ايښی په پای
پرې سازه لويه لار د هندوستان و خراسان ده
ګذر يې د اټک دی چې ترې ترس كا شاه ګدا
پكې مېشته مې زويه ،خليخانه لمسي،اولس دی
چې څوک پكې مېشته دي په امن اوسه د خدای
اسمان ځنې جدا كړ لاس د چا ، رسي اسمان تـــه
خوشحال له سرايه نه دی جدا شوی په خپل رای
(۳۵ م م ۲۲۹ او ۲۳۰ )

د ملک اكوړي دغه جاګيرداري او منصبداري دده اولادې ته په ميراث پاتـه شوه او دده په كورنۍ كې كلونه كلونه له يو نه بل ته ورسېده.

کله چې ملک اکوړی له خپل زوی یوسف خان او ملګرو سره د نازو خان بولاق خټک له لاسه ووژل شو . له ده اته زامن پاتې وو ، چې مشر یې یحیی خان نومېده او قبیلې یې دی د خپل مشر په توګه ومانه. ده ژر د خپل پلار او ورور بدل واخیست. دغه وخت د خټکو خېلونو تر منځ خپل منځي شخړې موجودې وې ، ځینې خېلونه د یحیی خان په سرداری راضي نه وو.

د دغو دښمنیو او شخړو درې څلور کاله شوي وو ، چې یوه ورځ یحیی خان نوښار ته روان و ، سینیو خټکو ورته لار نیولې وه. دی او دده زوی عالم خان دواړه یې ووژل د یحیی خان تر وژل کېدو وروسته قبیلې شهباز خان خټک (۱۰۰۰-۱۰۵۰ هـ ق) خپل مشر وټاکه. شهباز خان د خپل پلار او ورور د بدل اخیستو لپاره د سینیو خټکو پر کلیو حملې وکړې ، سیني خټک غروته وختل. د ملک ښادي خان زوی ووژل شو د خټکو سرداري په دې توګه تر شهباز خان راورسېده. (۱۰ م ۱۲ )

د خوشحال خان زوکړه:

خوشحال خان خټک د مغل شهنشاه نورالدین جهانګیر (۱۰۱٤-۱۰۳۷هـ) (۱٦۰۵ – ۱٦۲۷ ع) په زمانه کې د ۱۰۲۲ هـ ق کال د دویمې خور په میاشت ، چې د ۱٦۱۳ ع کال د مې یا جون له میاشتو سره سمون خوري ، له پېښور نه ۳۵ میله ختیځ لور ته په سرای اکوړه کې چې د لنډي سیند په سهیلي غاړه پروت دی د شهباز خان کره وزیږېد. (۳٦ م ۸ )

په یوه قصیده کې چې ده د خپلې کورنۍ حال احوال پکې راوړی د خپل ځان او نیکونو په اړه یې څو بیتونه راوړو:

| | |
|---|---|
| راشــــه واوره دا داســــتان | نیک و بـــد پکې عیان |
| هم عبرت هـــم نصیحت دی | پرې دې پوه شي دانایان |
| زه خوشحال د شهباز خان یم | چې تورزن یم کان په کان |
| شهباز خـــان د یحیی خان وو | چې بـــل نه و هسې ځوان |
| یحیی خـــان د اکـــوړي وو | چـــې په توره شو سلطان |
| د هجرت زر دوه ویشت سن وو | چـــې زه راغلم په جهان |

هــغه کال پـــــوره پنځوس و     چې شهـید شو شهباز خان
د هـــغـــه دور بــــاد شاه و     قـــــدر دان شاه جهان
د پـــــلار ځـای یې وما راکړ     په اولـــس شوم حکمران

(۳٦ م م ٥٨١ او ٥٨٢ )

زده کړه:

د خوشحال خان خټک زده کړه سیستماتیکه بڼه نلري او هم یې د زده کړې په اړه پوره څرګندونې نه دي کړي. که څه هم نوموړي د خپل ژوند اکثره پېښې په نظم کړې دي او د ځان او کورنۍ په اړه یې ډېر څه په څرګند ډول راوړي دي، خو د خپلو زده کړو په اړه یې داسې څرګند څه په لاس کې نشته په دې اړه هېواد مل په خپل اثر (ننګیالی د زمانې ) کې د ځینو څېړونکو لیکنې راوړي چې زه یې دلته اړینې بولم:

په دستار نامه کې راغلي دي: (( زموږ استاد اویس صدیق ملتاني ډېر بزرګ متبرک سړی و ، د علوم ظاهري او باطني بهرور و ... ))

له دې پورته یادونې سړی دومره پوهېږي چې خوشحال خان له شاه اویس ملتاني نه زده کړه کړې وه ، هغه یې استاد و. خو لکه استاد کامل چې ویلي دي:

(( دانه ده ښکاره چې له هغه نه خوشحال خان کله ، چېرې او څومره وخت زده کړه کړې ده. ))

پرېشان خټک ویلي دي چې د ځینو خلکو دا خیال دی چې خان په ملتان کې هم درس ویلی دی، خو ځینې بیا وایي کېدای شي شاه اویس ملتاني دې په پېښور کې تدریس کاوه ځکه چې پېښور هم د دیني علومو مرکز و.

د خوشحال خان خټک د زده کړې په باب سړی دا ویلای شي چې ده د کور په جومات او یا سیمه ییزه مدرسه کې درس ویلای دی. اما دانه ده ښکاره چې ده څومره وخت او د ژوند تر کوم کال پورې د زده کړې لړۍ جاري ساتلې ده. په استادانو کې یې یوازې د شاه اویس ملتاني نوم څرګند دی نور استادان یې نه دي معلوم....

خو که چېرې سړی د خوشحال بابا ټول اثار مطالعه کړي نو ورته ښکاري چې دده خارق العاده استعداد د زده کړې او مطالعې له لارې روزل شوی دی او د غو زده کړو یې بیا په اثارو کې خپل ځان ښکاره کړی دی.

عبدالحی حبیبي د خوشحال مرغلرې د مقدمې په (۱۸ مخ) کې لیکلي دي:
(( خوشحال خان په کوچنیوالي کې د خپلې زمانې مروج علوم ټول ویلي وو. دده له کلامه ښه ښکاریږي چې ده اسلامي علوم لکه: فقه، حدیث، تفسیر او نور عقلي او فلسفي علوم، لکه: منطق، حکمت، ادبي علمونه، د فصاحت او بلاغت اصول، لکه: معاني، بیان، عروض، قافیه او نور ټول ویلي او پرې عالم و. ))
د خپل وخت له ځینو مشهورو عالمانو سره یې ناسته ولاړه هم درلوده، له هغو څخه یو هم مولانا عبد الحکیم سیالکوټي (۱۰٦۷ هـ ق مړ) دی. دی د جهانګیر او شاه جهان په دورانو نو کې د نیمې وچې له جیدو عالمانو څخه و. خوشحال خان په دستار نامه کې راوړي دي: (( عالم العلما مولانا عبدالحکیم سیالکوټی مې په خپله وپوښتېده، لکه: مسطور شول.... )) په کلیات کې یې دده په باب لولو:

مولانا عبدالحکیم      د دنیا د دین حکیم
د جوګیانو وګروه ته      په تعظیم و په تکریم
(۱۰ م م ١٤-١٦)

واده او اولاده

خوشحال خان ختک په (۱۰٤۰ هـ) کال د ۱۸ کالو په عمر واده وکړ، د واده په ورځ پرې سخته تبه راغلې وه، چې په خپلې ورا پسې هم لاړ نشو. هېواد مل لیکي چې په ناوې پسې د خسر کورته نشوای تللای، ناوې یې انا (قذیفې) راوسته. دی له تبې تاوېده لوځې پوځې یې درلودې. دده د خولو کولو لپاره یې مور او څو نورو ښځو بړستن پرې ټینګه کړه، تر دې حده چې خان بې هوښه نه بلکې داسې فکر کېده چې مړ دې وي. ښځو شور فغان پیل کړ، مګر الله تعالی دی وساته، ساه پکې وغړېده، دولس ورځې وروسته خو له پرې راغله. لږ پر حال راغی خلک یې وپېژندل او خپله ناوې یې ولیده چې سرته یې ناسته وه.

دا و دخوشحال خان د لومړي واده لنډ بیان چې تاریخ مرصع په ډېر تفصیل او په زړه پورې بیان کړی دی، خو دا باید وویل شي، چې خوشحال خان څو نور ودونه هم کړي وو چې شمېر او وختونه یې خوشحالپوهانونه دي ښودلي او دخان په اثارو کې یې هم یاد نه دی راغلی. (۱۰ م م ۱۸ او ۱۹)

خوشحال خان خټک څو ودونه کړي وو. پر نکاحي مېرمنو سربېره يې په حرم کې وينځې هم درلودې. له دغو مېرمنو او وينځو څخه يې د شپېتو شاو خوا زامن او يو د پرش لونې زېږېدلې وې.

د تاريخ مرصع په (۲۵۸-۲۵۹مخونو ) کې راغلي دي: (( ... واضح دې شي ، خان علين مكان ته حق تعالى شپږ پنځوس فرزندان نارينه كرامت كړه ، په دا واړو كې خان جنت مكان و الانښان چې والد د مولف دى ، اثر او ولي عهد و .... سعادت خان ، بهرام خان ، نظام خان ، يحيى خان او شهباز خان دا شپږ واړه له يوې موره و ..... ) )

خان هم په خپل ديوان کې وخت په وخت د خپلو زامنو شمېر ښودلى دى دا شمېر يو ډول نه دى کله زيات او کله لږ ، لکه په يوه څلوريزه کې وايي.

په شمار مې زويه تر شپېته زيات دي
نيمګي به مړه وي نيمګي حـيات دي
چې را څرګند شول په کاروبـــــار کې
تردې ژوند يو بهتر امـــــــــوات دي

په یوه بل بیت کې وایي:

که پنځوس دي که شپېته دي داغ د زړه دي
یـــــو څـــو لاپکې افت شول تر دا میانه

بل بیت دی:

اته ویشت لرم زویه نشته یو د بل په رنګ

خان د خپلو ځینو زامنو د زوکړې تاریخي قطعې په دري نظم کې ویلي دي او دا قطعې افضل خان ختک په تاریخ مرصع کې راخیستي دي. پر اشرف خان، سعادت خان، بهرام خان، نظام خان، یحیی خان او شهباز خان سربېره چې له یوې موره وو. د څو نورو زامنو نومونه یې چې د خان له کلامه او تاریخ مرصع نه لاس ته راځي دادي: عبد القادر خان، صدر خان، عابد خان، نصرت خان، سکندر خان، ګوهر خان، عجب خان، آزاد خان، عبدالعزیز خان، خالد خان، طاهر خان، بختناک، جلال خان، عادل خان، جعفر خان، اکبر خان، عبد الرحمن خان، نجابت خان، ابو الخیر خان، فرحت خان، مومن خان، زاهد خان، حامد خان، عادل خان، بشیر خان، اسمعیل خان، یوسف خان، کمال خان، محبت خان، علاوالدین خان، فتح خان، نوروز خان، شاه علي خان، جنګي خان، مشکر الله خان، او نور.... د خان د لوڼو شمېر تاریخ مرصع (۳۱) ښودلای دی:
خو په فراقنامه کې خان دا شمېره دوه دېرش ښودلې ده.
د لوڼو په نومونو کې یې د دوو نومونه موږ ته ښکاره دي، یوه بي بي تاجه او بله بي بي حلیمه. (۱۰م م ۱٦۸ او ۱٦۹)
په پورته زامنو او لوڼو کې یې ځینې د پښتو ژبې تکړه لیکوال او شاعران تېر شوي دي.

خوشحال خان ختټک ته د قبیلې مشري ورسپارل کېدل

د ختټکو او یوسفزیو تر منځ کلونه دښمني پرلپسې پر یو بل د بریدونو په نتیجه کې لا پسې تازه کېدې په (۱۰۵۰ هـ ق) کال شهباز خان له یو سفزیو سره په جګړه کې ډېر سخت ټپي شو خوشحال خان ختټک هم ډېر سخت ټپ خوړلی و. شهباز خان د همدې زخم له سببه پنځوس ورځې وروسته د پنځوسو کالو په عمر مړشو. دا چې خو شحال خان ختټک د پلار مشر زوی و نو قبیلې دی د سردار او مشر په توګه ومانه. ښاغلی کامل لیکي:

((په ۱۰۵۰ سنه هـ(۱٤-۱٦٤۰ع) کې اکا خېلو چې د یوسفزو د کمال زي ټپي خلق د مالیې له ورکولو نه انکار وکړ، د رمضان په وروستیو کې شهباز خان په دوی حمله وکړه خوشحال هم ورسره و. د بلړ د کندې په خوا کې د مردان په ضلع کې طورو او مایا و ته نزدې د ختټکو اویو سفزو جنګ وشو. شهباز خان یو لویګنده په غشي ولګیدو. تر بور ساقي بیګ یې ومړ...

شهباز خان پس له پنځوسو ورځو د پنځوسو کالو په عمر پر (۱۰۵۰ هـ ق) کال د شوال په پنځم دزیارت په ورځ چې د (۱٦٤۱ ع) کال د جنوری له اتلسمې سره سمون خوري. په حق ورسید.)) (۳٦ م ۱۰)

کله چې خوشحال خان ختټک د خپلې قبیلې مشر کېږي شاه جهان هم دده مشري تایید وي. چې خوشحال خان ختټک یې په یو ځای کې داسې بیان کوي.

| | |
|---|---|
| د هــــغه دور بادشاه و | قـــدر دان شاه جهان |
| د پــلار ځای یې وماراکړ | په اولس شوم حکمران |

(۳٦ م ۵۸۲)

خوشحال خان ختټک د پلار په ژوند د قبیلې د مشرۍ پر وخت له مغلو سره پوره ډېرې وهلي دي، چې د موضوع د اوږدېدو د مخنیوي لپاره یې دلته راوړل اړین نه بولم که څوک یې د لوستو هیله لري، ننګیالی د زمانې، کلیات خوشحال خان ختټک د کامل په سریزه ماخذونه کتلای شي.

خوشحال خان ختټک د مغلو په بند کې:

په (۱۳۷٤ هـ) کال کې امیر خوافي چې خلکو په سید امیر خان مخاطب کاوه د کابل صوبه دار و ، ده له اورنګزیب (ابو المظفر محی الدین محمد اورنګزېب ) سره وکتل ، د هغه له غوږه یې دا خبره تېره کړه ،چې تر څو د ځمکو ځینې خاوندان نیول شوي نه وي ، تر هغې د رهدارۍ د باج د ممانعت احکام نافذېدای نشي. ددې غشي نخښه په اصل کې خوشحال خان ختټک و ، اورنګزېب پر تخت د دویم ځل ناستې سره سم ( روژه ۱۰٦۹ – ۱۰۷۰ هـ) د غلې او د ځینو نورو جنسونو د ټکس د معافۍ حکم کړی و.

له دې حکم سره سم عامو وګړو ته ډېره ګټه ورسېده او په سر کاري بودیجه کې د ۲۵ لکو روپو کمې راغلی و. ددې حکم اثر په ځرګند ډول ځمکه لرونکو (خانانو ) او جاګیردارانو په ګټو هم پرېواته. مګر ددې خبرې هېڅ ډول شهادت نشته چې ددې حکم تر جاري کېدو وروسته خوشحال خان ختټک د څه ډول سرغړونې یا نافرمانۍ څرګندونه کړې وي. بلکې هغه هم همغسې د حکومت منونکی او وفادار و او د حکومت له مخالفانو سره به یې جنګونه کول. سمه خبره داوه چې دا چل سید امیر خوافي د خپل مرستیال میرزا عبدالرحیم (چې په پېښور کې و ) او د خوشحال خان په منځ کې د خفګان او د خوشحال خان ترونو بهادر خان او فیروز خان سره د سازش په سبب جوړ کړی و. میرزا عبدالرحیم سید امیر خان خوافي ته ویلي و ، چې تر څو پورې ته یو څو لوی لوی سړي بندیان نه کړې تر هغې ستا د صوبه دارۍ نقش نشي کښېناستی او د خوشحال خان ترونو ورسره پنځوس زره روپۍ کړې وې. سید ا میر خان بادشاه ته ګونګه او مجمله وینا کړې وه. نه یې ورته د چا خاص سړي نوم اخیستی و او نه یې د چا د نیولو اجازت اخیستی و. خو ورته یې ووې چې دلارې د ټکس د منع کېدو د احکامو د پلي کولو لپاره د زور زیاتي د څرګندولو ضرورت دی. کله چې باد شاه ورته ددې اجازه وکړه نو پېښور ته راغی او خوشحال خان یې د سلا مشورې لپاره پېښور ته راوغوښت. د (۱۳۷٤ هـ) کال د څلورمې خور په وسط چې د جمعې ورځ وه خوشحال خان پېښور ته راغی ، دربار ته یې ځواب ولېږه چې زه راغلم. ځواب راغی چې سبا دربار ته ځان حاضر کړه ، درې ورځې تېرې شوې خو دربار ونه شو په پای کې د دصوبه دار سکرتر د ګجرات

شیخ خوشحال خان خټک ته ځواب وکړ ،چې ماته د مشورې لپاره راشه کله چې خوشحال خان ورغی هغه یې ونیوه او پنځه منۍ بېړۍ یې ورپه پښو کړې د خوشحال ترونو له صوبه دار نه خلعتونه واخیستل ، خټک د دوی وژلو ته جوړ شول. خوشحال خان منع کړل د خوشحال په نیولو کې چې کومو کسانو برخه لرله د هغوی ذکر دی په خپلو نظمونو کې ځای پر ځای کوي. ..

خوشحال خان دوې میاشتې په پېښور کې وساتل شو ، کله چې یې د صوبه دار د پنځوسو زرو روپو غوښتنه رد کړه ، نو د هندوستان په لور روان شو د (١٣٧٤ هـ) کال د روژې په (١٥ مه ) یا (١٦ مه) هندوستان ته ورسول شو.

هلته د نومړي ورورو میرباز خان ، تر بور یې باقي خان او زوی یې سعادت خان مخکې ترده رسېدلي وو او له محمد امین خان میر بخشي (چې د اورنګزېب خاص نژدې کس او لوی منصبدار و ) سره لیدلي وو.

محمد امین خان او د خوشحال خان د زړور افسر اصالت خان وراره یعنې سید میران المخاطب په میر خان ( د خپل خان زوی ) د خوشحال خان د خلاصي دېر کوښښ وکړ. خو خوشحال خان خوشې نه شو ، نو میر باز خان ، باقي خان او سعادت خان بیرته هېواد ته راستانه شول... خوشحال خان د قید قریباً دوه نیم کاله په دهلي او د جیپور په ریاست کې د رنتهبور په کوټ کې تېر کړل د ذیعقدې په پنځمه د رنتهبور له کوټ نه راوستل شو او بیا اګرې ته یوووړل شو او هلته له بنده خوشې کړل شو ، خو په دې شرط چې هېواد ته به نه ځي او همدلته نظر بند وساتل شو.

خوشحال خان خټک د قید او بند پر وخت په نظم او نثر کې ډېر څه لیکلي دي چې تر ټولو ارزښتمن اثر یې (دستار نامه ) ده چې د لومړي ځل لپاره پکې د ساده نثر د لیکلو هڅه او دودونه شوې ده.

اخر هم د هرې شپې پای وې دی هم پر (١٠٧٩ هـ) کال له مهابت خان ( چې د کابل صوبه دار مقرر شوی و ) سره یو ځای خپل هېواد ته راغی. (٣٦ م م ١٧ــ٢٠ )

د خوشحال خان ختټک جګړې

زه د موضوع د لنډون لپاره دلته یوازې د خوشحال خان ختټک دځینو مشهورو جګړو دنومونو او نېټو په راوړو بسنه کوم:

۱ – په(۱۰۳۵ هـ) کال د بهاکو خان یوسفزي د بولاقو پر ختټکو حمله او شهباز خان یې د مرستې لپاره له یو واړه لښکر سره مقابلې ته ورغی ، چې خوشحال خان هم په دې جګړه کې د دیار لسو کالو په عمر د لومړي ځل لپاره ګډون کړی دی.

۲ – پر ۱۰۴۲ هـ کال پر عیسی خیلو یې برید کړی دی چې ځینې همدا کال ښیي ځینې وایي چې څو ترې ته ترتګ وروسته یې دا حمله کړې ده.

۳ – پر (۱۰۵۰ هـ) کال اکا خېلو د مالیې په ورکولو کې ناغیرې کړې وه ، په همدې بنسټ شهباز خان د روژې په وروستیو کې له یو واړه لښکر سره د اکا خېلو پر سیمه برید وکړ، چې خوشحال خان او جمیل بېګ هم له شهباز خان سره ملګري و.(۳۶م م ۹ او ۱۰ )

٤ – پر (۱۰۵۱ هـ) کال د کانګړې سوبه

٥ – پر (۱۰٥٦ هـ) کال د بلخ او بدخشان جنګي پېښې

٦ – پر (۱۰٦۳ هـ) کال له بنګښو سره جګړې

۷ – پر (۱۰۷۰ هـ ) د تېرا مهم

۸ – پر (۱۰۷۰ هـ) کال یې له یو سفزیو سره جګړې

۹ – پر (۱۰۷۳ هـ )کال له باغیانو سره جګړې

(۱۰ م م ۳۲-٤۲ )

۱۰ – پر (۱۰۸۳ هـ) کال د خېبر جګړه

۱۱ – پر (۱۰۸۳ یا ۱۰۸٤ ) هـ کال د خوشحال خان او بهرام خان تر منځ وړې جګړې

۱۲ – پر (۱۰۸٤ هـ) کال له بنګښو سره جګړه

۱۳ – د (۱۰۸٤ هـ) په پای کې د کړپې او نوښار جګړې

۱٤- پر (۱۰۸٦ هـ) د ګنبت جګړه

۱٥ – پر (۱۰۹۱ هـ) د ډوډې جګړه

(۳٦ م م ۲۲-۳۰ )

همدارنګه نورې ورې او خال خال جګړې يې کېدای شي په نورو کتابونو کې په پوره تفصيل سره راغلې وي.

د خوشحال خان مړينه

خوشحال خان د ژوند په وروستيو کې په ډمبره نومي غره کې پناه واخيسته، خو ډېر ژوندی پاتې نه شو د (۱۱۰۰ هـ) کال د ربيع الثاني مياشتې په (۲۸ مه) نېټه د جمعې په ورځ همځلته په حق ورسېد.

انالله و انا اليه راجعون ه

(۳۶ م ۳۱)

د نوموړي قبر اوس په سرای اکوړه ختک کې دی.

## د خوشحال خان خټک فرهنګي اړخ ته يوه لنډه کتنه

نه بـه زما غوندې بل ننګيالی راشي
نه به زما غوندې بل جنګيالی راشي
خــټک لا پرېږده په درست افغان کې
عــجب که هسې فرهنګيالی راشي
(۱۰ م ۱۷۰)

د خوشحال خـان خټـک د پورتـه څلوريزې پـه پـام کې نيولـو سره دده د ژونـد دري عمده خواوې تر سترګو کېږي: ننګ ، جنګ او فرهنګ.

د ننګ او جنګ خواوې يې ډېرې په بوللو پورې اړه لري او د فرهنګ برخه يـې بيا په غزلو څلوريزو او قطعو کې تر ډېره حده تر سترګو کېږي.

د فرهنګ معنی ده ادب ، تربيت ، علم ، معرفت ، دودونه ، د يوقوم د هنرونو مجموعه او يا هغه کتاب چې د يوې يا څوژبـو د لغـاتو شـرحه پکـې راغلـې وي. (۸ م ۷۲۹)

خوشحال خان خټک د ژوند داسې خوا نه ده پرېښې چې په هغې يې په نثر يـا نظم څه ليکلي نه وي. خوشحال خټک د خپل فکر ملغلرې د ليک په دوو بڼو (نثر او نظم ) تر موږ رارسولي دي. لومړی يې هغه اثار چې په نظم کې يې ليکلي د موضـوع د اوږدوالي د مخنيـوي لپـاره يـې يـوازې نومونـه راوړم اوبيـا بـه يـې د نثـر د برخـې د اثارو د نوم يادونه بسنه وکړم.

الف- د خوشحال خټک د منظومو اثارو نومونه:

I- تخليقي منظوم اثار:

(۱) کليات (۲) فراقنامه (۳) پښتو منظومه بازنامه (٤) سـواتنامه (٥) فـضل نامـه (٦) فالنامه (۷) طبنامه. (۱۰ م م ۱۷۷-۲۰۳)

II- منظومې ژباړې:

(۱) نام حق (۲) اخلاقنامه.
ب - منثور اثار:
(۱) بیاض (۲) دستار نامه (۳) ساعتنامه.
د –د خوشحال ختبک هغه اثار چې یوازې نومونه یې څرګند دي:
(۱) هدایه (۲) ریاض الحقیقت (۳) فرخنامه (٤) عنایه (٥) آیینه (٦) رساله مناظره
(۷) کفایه (۸) تفسیر سورة یوسف.
هـ - زنځیری:
(۱۰ م م ۱۷۷ـ ۲۰۳)

د خوشحال خان خټک شعر

د خوشحال خټک د شاعرۍ دیګ ده د عمر په شل کلنۍ کې پر نغري اېښودل شوی او د خپل عمر په شپېته کلنۍ کې یې د پوخوالي دعوه کړې ده ، د ده نظر د خپل شعر په اړه همدا دی چې پوره څلویښت کاله ده د شعر ویلو او لیکلو ریاضت کړی دی. دا چې د انسان عمر څلویښت کلنۍ ته ورسېږي نو بیا یې عقل پوخ شي ، حضرت محمد (ص) هم په څلویښت کلنۍ کې پیغمبر شه ، همدا رنګه په دنیا یي قانون کې هم هغه څوک چې څلویښت کاله عمر ونه لري د ولسمشرۍ د کاندیدیدو او انتخابېدو حق نه لري. ده هم د خپل شعر د پخوالي دعوه تر څلویښت کاله شاعرۍ وروسته کړې ده. دی وایي:

په شل کاله کې دیګ زما د شعر په اور بار شه
په دا دور مې پوخ کړ چې شپېته کاله مې تللي
(۳٦ م ٦۲۳)

خوشحال خان خټک خپل ټول کارونه د خاصو غرضونو له مخې کړي دي داسې نه ده چې هر حرکت ده بې فکره او د وخت د ضیاع لپاره کړی وي ، دی وایي:

په پښتو شعر چې ما علم بلند کړ
د خبرو ملک مې فتح په سمند کړ
په پارسۍ ژبه مې هم ژبه ګویا ده
په پښتو ژبه مې خلک بهرمند کړ
په تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په معنی مې د شیراز او د خجند کړ
(۳٦ م م ۵۳۳-۵۳۵)

سره له دې چې دا هر څه خوشحال خان د پښتنو لپاره قصدي کړي، خو بیا هم د الله(ج) ورکړه یې بولي او وايي چې دا د الله رضا وه، چې پښتانه دې په شعر او شاعرۍ پوه شي نو ځکه یې زه په شاعرۍ ګویا کړم.

مګر زه یې چې ګویا په شاعرۍ کړم
پښــــتانـــــه یې پوهـول ایزدتعال
(۳٦ م ٥٤١)

خوشحال خان خټک په نظم کې د هغه وخت د مشترکو نظمونو ټولې جولې په پښتو کې وکارولې او نورو ته یې هم همدا سپارښتنه کوله، چې پښتو ژبه دې په علمي ،ادبي او تاریخي لحاظ مخکې لاړه شي او تر دې حده پرې مین دی.

فــــــارسي شعر مــــــې هم زده سلیقه لرم د واړه
پښتو شعر مې خوښ شو هر څوک خپل ګڼي ښاغلي
(۳٥ م ٤٦۸)

همدارنګه د محتوی له مخې ځینې څېړونکي په دې نظر دي ،چې د ژوند داسې خوا به نه وي چې خوشحال خان خټک له هغه وخت سره څه پرې لیکلي نه وي.
د فنونو له مخې خوشحال پخپل کلام کې د فصاحت ، بلاغت ، بدیع ، تشبیه ، استعارې ، کنایې ، مرسل مجاز او نورو شعري ښکلاوو خیال ساتلی دی ، لکه څنګه چې دی وایي:

درست دیوان مې لکه باغ د عالم ګنج دی
پـــــــــــکې هــــر رنګه ګلونه هر نهال
(۳٥ م ۳۹۸)

له دې بیت څخه دا څرګندېږي، چې ده د ژوند په هره خوا د خپل فکر نیلی ځغلولی دی. اوس به ده د شعر یو څو بېلګې راوړو چې لږه اندازه ده د شعر له محتوی او دریځ سره بلد شو :

ټولنيز مسايل

دلته هر بيت په ځرګند ډول يوه ټولنيزه مسئله راپېژني ،چې خوشحال خان په ډېر جرات سره راوړې ده:

نشته بـــانګ د موزن په درست تيراه
مګر واورې بانګ د چرګ په سحرګاه
مــــوحــد د تصوف درسالو دي
مسئالــــه د شـــرعيت ګڼي ګناه
(۳٤م ۲۹۸)

هر چې ستا د زړه رضا واړه هغه کړه
خو چې زړه د چا بد ېږي هغه مه کړه
(۳٤ م ۳۰۲)

کتابـــــونه د اسمان د ځمکې لولي
په عمل يې فرق تر مځکې تر اسمان وي
(۳٤م ۳٥۷)

مدد د طالع بـــويه چې هنر سره همراه وي
هنر به سود ونه کا د طالع که درته شاه شي
(۳٤ م ۳۸۷)

مړ هغه چې نه يې نوم نه يې نښان شته
تل تر تله پـــــه ژوندون پـــايي ښاغلي
(۳۴ م ۳۹۰)

کوم ملک دی له ما پاتې چې مې پل نه دی پرې ايښی
هر ځای به ورته ياد کړم که څوک شته سياحت کړوني
(۳٤م ٤۰۸)

ګوره بيا دې څه په زړه کوم مې ګناه دی
چې ليدو لـــره دې درشم ځان اوده کړې
(۳٤ م ٤٤۲)

څوک د حج څوک د تلقين څوک د مکتب شول

یـــــو خوشحال په واړو خلکو کې لونډ دی
(٣٤م ٣٣٨)
یـــــا کشتي له زور ورو سره مه کړه
یا د دوی غوندې پیدا کړه مړوندونه
(٣٤ م ٢٤٦)

مینه او عشق

په درست جهان به نه وي یو زما غوندې رسوا بل
ورځم توره وکښلی چـــــې مـــین واورم په تا بل
(٣٤م ١٠٨)
یاره ته چې جدایي جدایي وایې !
زه خوشحال د دې خبرې توان لرم؟
(٣٤ م ١٣٠)
زړه مې خدای مین کوي په ښایسته وو
هسې نه چې زه پخپله زړه مـــایل کړم
(٣٤ م ١٣٢)
چې دا هسې په پالنګ راغله نـو خیزه
الوداع ده د خوشحال خټک پـرهېزه
(٣٤ م ٢١٩)
د مجاز عاشقي عین حـــقیقت ده
و معنو ته زینه ایښې د صورت ده
(٣٤ م ٢٧٧)
په هر څه کې ننداره د هغه مخ کړم
چې له ډېرې پیدایی نــــاپدید شو
(٣٤ م ١٨٥)
د خپل یار په مخ اوس نه دی مین شوی
د خوشحال په زړه کې دا مـینه ځایي ده

(۳٤ م ۲۸۲)

چرته یې ای عشقه چې وربوز یې راته مات کړې
بیا ګوره چې عقل په تــــــــدبیر راغلی دی

(۳٤م ۳٤٦)

عقله ته له عشقه لــرې لــرې ګرځه
مخالفت چې سره ورشي فساد شي

(۳٤ م ٤۱۸)

محبوب ته ستغه ویل

څو به ستا د دې غمونو زغمل تل کړم
د یـــــارانو کمی نشته یار به بل کړم

(۳٤ م ۱۲٦)

که ته خوله وماته نه راکړې ملکې
بلې هــــم راته نیولې ده خولګې

(۳٤ م ٤۹۲)

که زه نه وای تا بــــه ځان لره بلل څوک
په پالنګ به دې داهسې درختل څوک

(۳٥ م ۷۰)

چې دا هسې بې نیازي کــــوې دا ښه کړې
زه به نور یاران پیدا کــــــړم ته به څه کړې

(۳۲ م ۳۸۹)

مرګ لره یې واړه د ډیـــــــــــلي لښکرې راغلې
ته لا د خوشحال په مرګ ځان روغ نه ګڼې ننګ کړې

(۳٥م ۳۲۹)

د شیخ (زاهد) او عارف توپیر

زاهـدان شیخان و هر لوري ته ډېر دي

د خوشحال خټک په کار دي عارفان

(٣٤ م ١٥٥)

پـــه تېره الماس د پا سه قدم ایښی
یـــو څه باریکه لار د شـــریعت ده

(٣٤ م ٢٧٧)

زاهدان چې لمونځ روژه کا جنت غواړي
مــــا خوشحال د مزدوریه طاعت نه زده

(٣٤ م ٢٩٧)

د یارانو یاد

ښه خواږه یاران چې ما خوشحال لیدل په سترګو
اوس یې په ژړا ژړا مزار لـــــــــــــره ور درومم

(٣٤ م ١٣٧)

ایمل خان دریا خان دواړه په ښه رنګ تېر شول په ننګ کې
د دواړو په فــــــــــــــراق کې زمــــــا تل آه وماتم دی

(٣٤ م ٣١٦)

ایمل خان دریا خان دواړه خوردبین تېر شول
اوس خـــــو پاتو و مغول ته یو خوشحال دی

(٣٤ م ٣٤٨)

اوس په خپلو زړو خوښ اوسه خوشحاله
ددې دور ځــــــواني مه کړه نا په کارې

(٣٤ م ٤٣٥)

بهرام او خوشحال

دا هـــــم ځای د تعجب د حیرانۍ دی
چې لښکرې په خوشحال کا بهرام خان

(٣٤ م ١٦١)

له خــو شحاله يې بهرام غوندې پيدا کړ
دم و اهــه نشي ځوک څه و ايي يزدان ته
(۳٤ م ۲۰۱ )
ســـــتا هنر د سرداری څه زده بهرامه
ســـرداري دې په خپل دور کړه بدنامه
هــــم تمــامې خپل خانې لره بلا شوې
هـم خپل ځان لره بلا شوې بد فرجامه
(۳٤ م ۲۳۷ )

د وخت له خلکو ګيله
د خوشحال قدر که اوس په هيڅا نشته
پــــــس له مرګه به يې ياد کا ډېر عالم
(۳٤ م ۱۲۳ )
کـــــــه توفيق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشحال به دوباره شي په دا ځوان
(۳٤ م ۱٥٤ )
چې پخپله افغاني ژبه نادان دی
په ترکي خبرې څه وايي افغان ته
(۳٤ م ۲۰۱ )
د وروســتي سپرلي نـــرګس دی
د خـــــــــــوشحال قدر لری
(۳۲ م ٤۹۳ )
له خپله قومه ګيله
په زرګونه راته لاف کړ اوس يو نشته
اشـــــنايي له هر چا ښه ده بې خټکه
مــروت ياري ترې مه غواړه خوشحاله !
هـــــر سړی چې اوبه وڅښي له اټکه

(۳٤ م ۲۳۰)

تفخـــــــص که څوک د خوږو زړو نو کاندي
د خپل قــوم له لاسه ورک خوشحال ختک دی

(۳٤ م ۳۲۳)

زړښت یادول

وخت د ځوانۍ تېر شو اوس پیري راغله خوشحاله
نـــــــور کــارونه پرېږده خو د ګور کوه سامان

(۳٤ م ۱٦٤)

اوس پیري راغله خوشحاله
د ځـــــو انيې چارې پرېږده

(۳٤ م ۳۰۱)

د سترګو په جوهرو مې په سي کې راښکاره شوه
په مښکو په ګــــــــوهرو مې په کال راغله پیري

(۳٤ م ۳۸۰)

له (سي) څخه مقصد (۷۰) کلني او له (کال) څخه مقصد د (۵۱) کلنۍ عمر دی ، د سترګو له جوهرو څخه مراد نظر دی او لـه مښکو څخه مقصد ويښته او لـه ګوهرو څخه مقصد غاښونه دي.

یعنې په (۷۰) کلنۍ کې مې نظر خراب شه او په (۵۱) کلنۍ کې مې وېښته په سپينېدو او غاښونه په وتو شوو.

ځواني لاړه خوشحاله راوړه زر که عاشقي کړې
یــا زر دي یا ځواني چې ورته زیر دي ښایسته

(۳٤ م ۲۷۲)

بدیع ، تشبیه او شعر

د صنعت زیور په ځو رنګه پربوځي
د تشبیه چنډن ، چووه باندې طـراز
(۳٤ م ۸۰)
بې استاده شاعري بې لارې تله دي
یا وه ګوی ګرځي په لوړو پــه ژورو
(۳٤ م ۱۷۹)
په یرغ په مصلحت نه ده ځـــــاني ده
د خوشحال چې سرې کار شو له اشعارو
(۳٤ م ۲۱۰)
خدایه چا وته یې کنبم ځوک به پرې پوه شي
ما ویلی هر یو بیت دی دفـــــــترونه
(۳٤ م ۲٤۷)
د هغه شاعر مخ تور شه چې په طمع
و هرور و هر دربار وتـــــه ولاړ وي
(۳٤ م ۳۸۵)
رنګ زما د شعر هېڅ سره ساز نه شي
لکه سپی راپسې ګرځـــي په دنبال
(۳٦ م ۵۳۷ مخ)
چې معنی ورسره نه وي ویل سپور وي
خدای به نه کا د خوشحال خبره سپوره
(۳٤ م ۲۱۰)
د خپل کار ستایل او په اړه یې وړاندوینه
ستا به نوم په جهان پاتې شي خوشحاله
یــــــــوه لویه مشغولا ده ستا د کار
(۳٤ م ۷۱)
هـــر احوال ورته ښکاره دی د وګړي
د خوشحال خټک په پوهه کړه شاباس
(۳٤ م ۹۰)
هـــــــمېشه به پرې ناري وي د بلبلو

دا چې ساز کړ نن خوشحال په ویل باغ
(۳٤ م ۹٦)

هر غــــــــزل مې پر بیاض باندې وګوره
زه خوشحال خټک د زړه په وینو کښل کړم
(۳٤ م ۱۲۷)

د خوشحال خټک په ژبه برکت شه
چې ویـــل کا په پښتو له هره بابه
(۳٤ م ۱۹۲)

دا غزل چې خوشحال ووې
څــوک به وو ایي تر دا ښه
(۳٤ م ۲۸٦)

هـــر شاعر څخه تازه مضمون د خان دی
د ښه لیندي صدقه خوري د ښکار شاړې
(۳٤ م ۳۸٤)

زه خوشحال پښتون چې په پښتو په پارسۍ طاق یم
لا مــــــــې په پــښتو ژبه کې ژبه در غلېږي
(۳٤ م ٤۱۳)

دروغــــــژن یم که دا شعر
د میرزا په درست کتاب شته
(۳٤ م ۲۹٤)

خوشحال خان خټک د ځینو پوهانو په لیک کې
خوشحال خان خټک وایي:

د خوشحال قدر که اوس په هیچا نشته
پـــــس له مرګه به یې یاد کا ډېر عالم
(۳٤ م ۱۲۳)

خوشحال خان خټک د خپلو اثارو په لیدو دا وړاندوینه کړې وه، چې په ننني عصر کې کټ مټ یو حقیقت ګرځېدلی دی ، دا چې وایي (( د پښتنو په ژوند یو کې ښه نشته او په مړو کې یې بد )) هم د کاڼي کرښه ده. د خوشحال خان خټک هم په ژوند همدا حال و ، خو د هغه وخت پښتانه په دې څه پوهېدل چې دده اثار او کړنې به پښتو ژبې او پښتنو ته تلپاتې ژوند وروبښي.

د خوشحال خان خټک د اثارو په راڅرګندېدو سره په پښتو ادب کې یو مثبت اوښتون رامنځته شو ، ده په پښتو نظم او نثر کې د خپل فکر نیلی خورا ښه وځغلاوه آن چې پښتو ژبې ته یې نړیواله پېژندګلوي وروبخښله ، ده د نړۍ له پیاوړو او مشهورو لیکوالو څخه په خپل وخت کې ځان مخکې کړ او ټول یې ګوته پر غاښ کړل ، دلته زه ددې خبرې د تایید لپاره د څو مشهورو کره کتونکو نظر یې راوړم:

جارج مارګنسټرن لیکي:

(( د نیمې پېړۍ نه را ایسې زه د خوشحال خټک شعر لولم. په دې نیمه پېړۍ کې پرلپسې ترې خوند اخلم او قدر یې کوم ، خوشحال حق لري ، چې ځان د پښتو ژبې فردوسي او سعدي بولي. ))(۷ م ل)

نیکولای دوریانکوف لیکي:

((د خوشحال خان خټک نوم چې د پښتو په ادب کې یو نامتو کلاسیک شاعر و او په هغه پېړۍ کې د افغانانو د آزادۍ لپاره د مجادلې یو پیاوړی لار ښوونکی هم و د پښتون ملت د تاریخ په کتاب کې تل تر تله تازه او افتخاري صفحه ده. د هر ملت په تاریخ کې داسې غټ اشخاص وي ، چې یوه لویه پېړۍ د هغو په نامه یادېږي، ددې لپاره پوره اساس شته دی ، چې د پښتنو او افغانستان په تاریخ کې د خوشحال خان خټک پېړۍ هم وبولو . )) (۷ م ۱۷۲ )

مېرمن معصومه عصمتي یې د فارسي کلام په اړه لیکي:

((از بهترین قسمت اشعار خوشحال خان چه در دیوان و چه در اثار منظوم و منثور دیگر ش سخنانیست که این سخنور چیره دست دربارۀ طبقه نسوان و زنان

سروده وطبقات این جنس را نیک شناخته و با اشعار نغز ولطیف مزایای ایشان را تصویر و توضیح کرده است. )) (۷ م ۱۲۰ )
ښاغلی قیام الدین خادم لیکي:
(( په یو ځای زما له نظره تېر شول ، چې صدر خان وایي: ( ماته بابا وویل: [ پښتو کې مونږ ډېر اثار ولیکل ، مګر د پښتو قصې او د عاشقانو احوال نه دي لیکل شوي او دا خوا تشه پاتې ده ، په دې پلو باید پام وشي !] تر دې وروسته ما د [دلی او شهی ] په قیصه لیکلو پېل وکړ. ) ما چې دغه جملې ولوستې نو حیران شوم د قومیت او ملیت دومره لوی او عمیق مثال ته.)) (۷ م ۷۰ )

صدیق الله رښتین لیکي:
((خوشحال هېڅ ډول مضمون پرې نه ښود ، حقیقت یې له مجاز سره ونښلاوه ، عشقي ، بزمي ، اخلاقي ، اجتماعي ، وطني ، ملي ، فلسفي ، تصوفي ، رزمي ، حماسي ، فکاحي او نور هر راز مطالب یې د شعر په جامه کې ونغښتل ، د هر چا د ذوق لپاره یې د خپل شعر باغ و بڼ له رنګا رنګ ګلونو ځخه ډک کړ. )) (۷ م ع )

ګل باچا الفت لیکي:

(( په دې اخره زمانه کې چې شعر او شاعر د ځمکې له خلکو سره خپل تعلق له پخوا نه زیات کړ ، نو له اجتماعي ژوند او مدني خوا سره یې رابطه ډېره ټینګه شوه.

زما په عقیده دغه کار په پښتو شاعرۍ کې خوشحال خان خټک اغاز او تکمیل کړ او دغه لوی تحول یوازې ده ته منسوب دی. )) (۷ م ۱٦ )

ګویا اعتمادي یې د فارسي شعر په اړه وايي:

(( سبک و اسلوب وی در غزل همان عصاره و چکیده سبک های پشین است در اشعار دری او چیزی تازه و نوی که در خور ذکر باشد موجود نیست با این همه آنچه شعر دوستان کهن در شعر او می پسندند شیرینی و روانی بیان اوست ، موسیقي لطیف ، خوش آهنگ اوست که در ساده گی الفاظ و زیبایی معانی کلام اورا امتیاز خاص بخشیده است و سخن او را مثل یک پارچه حریر نرم و لطیف کرده است.. پار چه حریر که در کار گاه دل و جان شاعر بافته شده و زبان ساده او بران نقش و طراز پرنده شوشتری بسته است. )) (۷ م ۲۷ )

محمد نواز طایر یې د محتوا ، جولې او د کلام دنورو مزایا وو په اړه لیکي:

(( د خان د شعر موضوعات حمد او مناقب، مناجات او تصوف هم وو او د قومي او وطني شاعرۍ اخلاقیاتو نه علاوه د علمي او روحاني ژوند ټول اقدار یې هم احاطه کول. هغه که یو پلو د عالي افکارو او زور دارې ژبې خاوند و ، نو بل پلو یې په کلام کې هغه ټول شعري محاسن هم موجود وو ، چې فارسي وانو به پرې خپله ژبه کې د سخنورۍ داد اخیستو. هر قسم تشبیهات ، استعارې ، تجنیسات ، ایهامونه او نور صنایع بدایع د خان علیین مکان د کلام خصایص وو.

غزل ، رباعي ، قصیده ، قطعه ، نظم ، ترجیح بند ، ترکیب بند ، مخمس ، مسدس ، معشر ، مثنوي غرض دا چې د عروضي شاعرۍ داسې یو صنف نه وو ، چې خان پکې طبع ازمایي نه وه کړې. )) (۱۳م ۲۹۰ )

اقبال نسیم خټک لیکي:

(( حقه خبره داده چې خوشحال د جذبې او تخییل د امتزاج په برکت د شعر فن هغه اعلی معیار ته رسولی دی ، چې د راتلونکو لپاره نمونه ګرځېدلې ده. خوشحال دفن د جمالیاتي اړخ او مقصدیت دواړو خیال ساتلی دی ، د خوشحال د فن اعجاز د حقیقت او مجاز په پیوند کولو یا د (حرف حق ) په (شوخی رندانه ) سره په بیا نولو کې دی. )) (۲۹ م ٤۹٥ )

راج ولي شاه خټک د خوشحال خان خټک د هدف په اړه لیکي:

(( د خوشحال بابا په مکتب کې د علم و فن د هنرونو د محصول د تحریک تقاضې داسې وې ، چې په هر رنګ علم پښتو ژبې ته راوستی شي. د هر مضمون تابیا دې په پښتو ژبه هم او شي چې په پښتو کې نشته ، هره فلسفه او هر فکر دې په پښتو کې بلد کړی شي،چې پښتو ژبه یوه علمي او د عالم قام ژبه وګرځي. )) (۳۱ م ٤۹٥ )

علامه اقبال د خوشحال خان خټک په اړه خپل منظوم تقریظ لیکي:

خوش سرود آن شاعر افغان شناس
آنـــــکه بیند باز ګوید بی هراس
آن حـــــکیم مـــــلت افـــغانیا
آن طـــبیـــب عـــلت افـــغانـــیا
راز قـــومـی دید و بیبا کانه ګفت
حـــرفـه حق باشوخي رندانه ګفت:
(( اشتر یــــابـــد اګـر افغان حر
بـــابـــراق و ســاز و با امـبان در
هـــمت دونـــش از ان امــبال در
می شود خــــوشنود بازنګ شتر ))
(۷ م ٦٦ )

حمزه شینواری یې په یو بیت کې وایي:

په ننګ د پښتانه له سره تېر خوشحال خټک
په پنجه د اجل کې و شمشېر خوشحال خټک
(۷ م ۲۹۹ )

دخوشحال خان خټک د شخصیت ، شعر ، سیاست او نورو خواووپه اړه ډېر څه لیکل کېدای شي ، خو دلته د موضوع د لنډون لپاره په همدې بسنه کوم.

# بیان

د بیان لغوي معناوې په مختلفو کتابونو کې څرګندوالی ، واضح کول ، پیدا کېدل ، راوړل شوي دي او اصطلاحي تعریفونه یې هم د بیان په اړه په بېلابېلو کتابونو کې د محتوی له مخې یو ډول دی.

سید احمد هاشمي لیکي: (( بیان هغه اصول او قواعد راپېژني ،چې یوه واحده معنی په مختلفو لارو څرګنده کړو ) ) (۹ م م ۲۵۳ او ۲۵٤ )

سیروس شمیسا لیکي : (( بیان ایراد معنای واحد به طرق مختلف است، مشروط بر این که اختلاف آن طرق (شیوه های مختلف گفتار ) مبنی بر تخییل باشد ، یعنې لغات و عبارات به لحاظ خیال انگیزی نسبت به هم متفاوت باشد. ( وضوح و خفا داشته باشد. ) مثلاً به جای (صورت او زیبا است ) می توانیم بگوییم ( چهره او مثل ماه است ) ) (۲۸ م ۱۳ ).

نو ویلای شو چې بیان هغه پوهه ده، چې د هغې پواسطه یو څوک یوه معنی په مختلفو ډولونو ټولنې ته وړاندې کولی شي ، چې بې له کومې غوټې او پیچلتیا لوستونکي یا اوریدونکي ته په زړه پورې شي او د معنی په ښه را څرګندونه کې موثر تمام شي.

که موږ د یو چا زړورتیا په ګوته کو نو ویلای شو :

احمد د زمري غوندې زړور دی.

احمد زمري غوندې دی.

احمد زمری دی.

زمری دی.

پورته څلور واړه جملې یوه معنی را په ګوته کوي او هغه د احمد زړورتیا ده ، لومړی درې جملې د تشبیه درې ډوله ادنی ، منځنۍ او اعلی درجې راپېژني او څلورمه جمله د استعارې په بڼه راغلې ده، چې یوه تر بلې په زړه پورې ده. یا موږ د یو چا د سخاوت څرګندونه کوو نو وایو (لاس یې سوری دی ) چې دا له سخاوت څخه کنایه ده یعنې په لاس کې یې څه نه ټینګېږي ، هر څه چې لاس ته ورشي په خلکو یې وبښي.

د بیان موضوع

د بیان د علم موضوع د یوې معنی ښه وضاحت دی، چې دا کار په درې لارو (تشبیه ، مجاز او کنایه ) سره کوي. ډېر ځله داسې معناوې چې څرګندونه ښه نلري شاعر یې د بیان پواسطه د تشبیه ، مجاز یا کنایې له لارې د محسوساتو خواته رالېږدوي یعنې له یوه محسوس ځیز سره یې ورته کوي، چې زموږ په ذهن کې د یوې تابلو یا د انګریزی په اصطلاح د( Image ) په ډول را مجسم شي.

په هر لور چې غورځوي سرې هوی ده
د هـــوی فرس و هر لوري ته زین دی
(۳٤ م ۳۱۵)

شاعر غواړي چې هوی یا نفساني غوښتنې موږ ته راو پېژني او له هغو څخه د ځان ساتنې لوست راکړي نو (هوی ) یې له فرس (اس ) سره تشبیه کړې ده، چې په هر لور د تلو تابیا لري. دا جمله ( د هوی فرس و هر لوري ته زین دی ) داسې تابلو یا Image دی چې انځورګر که هر څومره خواري وکړي بیا یې هم له بیان څخه عاجز دی ، یوازې شاعر دی، چې دا کار تر سره کولای شي. دا او دې ته ورته ډېرې معناوې په ښه ډول خلکو ته وړاندې کول د بیان موضوع کېدای شي او ډېرې هغه کتابونه ، چې د بیان په اړه لیکل شوي همدا خبره کوي چې د بیان د علم موضوع یوه خبره په څو بڼو په بېلابېلو ډولو ویل دي.

د بیان د علم ګټې

د بیان په علم کې موږ له دې خبرې سره اشنا کېږو ، چې یوه معنی څنګه کولای شو لوستونکو یا اورېدونکو ته په مختلفو طریقو چې یوه یې تر بلې غوره او په زړه پورې وي وړاندې کړو. یوه کلمه ایکي یوازې یوه حقیقي معنا لري ،چې نورې ټولې معناوې یې مجازي دي ، په همدې مجازي معناو پوهېدنه د بیان د علم له لومړیو ګټو څخه ده.

سیروس شمیسا لیکي: ((هر علم معیار و محک وروش و آیین و به اصطلاح متدولوژي (روش شناسی) خاصی دارد که آن علم را بدان وسیله می سنجند و بر رسی می کنند ... زبان را با دستور زبان ارزیابی می کنند. اما محک و متدولوژی قسمت اعظمی از ادبیات تا حد بسیاری علم بیان است ... پس میتوان گفت علم بیان دستور زبان ادبیات است. )) (۲۸ م م ۱٦ او ۱۷ )

موږ کولای شو د بیان د علم پواسطه ډېر ادبي اثار و سنجوو ، دنوي والي او مبتذلوالي اندازه يې معلومه کړو او ټولو ادبي مسئالو ته په پوره پاملرنې ځواب وو ايو. ځکه چې ادبي ژبه ټوله انځوريزه ژبه ده.

د بيان درې ګونې څانګې

د بیان د علم بحث تشبیه ، مجاز او کنایه ده نو همدا يې درې ګونې څانګې دي، چې دلته به لږه لږه رڼا پرې واچوو او تشبیه به په خپل ځای چې د دې څېړنې اصلي موضوع ده وڅیړو. ځینې لیکوال د بیان موضوعګانې څلور ښیي چې په حقیقت کې د مجاز ډولونه (استعار او مرسل مجاز ) په دوو حسابوي. زما په نظر که اوس سمبولونه هم ورګډ کړو نو په یو روایت د بیان څانګې په څلورو او په بل روایت په پنځو وېشل کېږي چې عبارت دي له تشبیه ، استعاره ، مرسل مجاز ، سمبول او کنایه ، خو دا چې سمبول هم د مجاز پرمختللې بڼه ده استعاره او مرسل مجاز هم په مجاز کې جمع کېږي نو په همدې درې موضوعګانو (تشبیه ، مجاز او کنایه) يې وېشل غوره دي.

د دې په اړه پوره بحث په راتلونکو مخونو کې شوی دی، چې دلته يې را وړل تکرار او نا اړين بولم.

مجاز: مخکې تر دې چې مجاز وپېژنو ښه به وي ، چې په حقیقت يو څه ځان پوه کړو.

د هرې ځانګړې معنی لپاره يوه کلمه ټاکل شوې وي، چې کله هم هغه کلمه وويل شي همغه معنی چې دا کلمه ورته ټاکل شوې ده، بې له قرينې او واسطې ذهن ته راشي.

که چرته یو کلمه په همدې ډول د هغې معنی لپاره وکارول شي، چې ورته جوړه شوې او ټاکل شوې ده (حقیقت) وايي یعنې همدا يې (حقیقي) معنی ده او که

بې له دې څخه په هره معنی کې ،چې دا کلمه ورته نه وي جوړه شوې د څه مشابهت یا علاقې له مخې وکارول شي مجاز بلل کېږي.
که څوک ووایي چې : ((ګیدړ راغی.)) که چرته همغه ځناور مراد وي چې دا کلمه ورته جوړه او ټاکل شوې، دا ډول کارونه (حقیقي) ده او که چرته د کوم (بې زړه کس لپاره) کارول شوې وي نو (مجاز) بلل کېږي.
مجاز په لغوي معناوو عبدالقیوم قویم په خپل اثر (فنون ادبي) کې د متجاوز په معنی راوړی دی او د شمس قیس رازي په قول لیکي: ((مجاز هغه دی چې له حقیقت څخه تېر شي او کلمه په بله معنی کې وکاروي)). (٢٦ م ٧٠)
د مجاز لغوي معنی نورو لیکوالو د تېریدلو په مفهوم راوړې ده او په اصطلاح کې هغه ده چې یوه کلمه د څه مناسبت او اړیکې له مخې په دویمه معنی کې ،چې دا کلمه ورته جوړه شوې او ټاکل شوې نه ده، وکارول شي.
مجاز د علاقې له مخې په دوه ډوله دی. که چرته د حقیقي او مجازي معنی تر منځ یې علاقه تشبیه وه بیا مستعار مجاز یا استعاره ورته وایي او که چرته علاقه یې کوم بل شی و مرسل مجاز ورته وایي.
که یوازې یوه کلمه د خپلې حقیقي معنی پر ځای په بله مجازي معنی کې کارول شوې وي (مفرد) مجاز ورته وایي. لکه (زمری) چې یو زړور کس ته وکارول شي او که چرته د یو ترکیب په بڼه څو کلمې وي بیا ورته مرکب مجاز وایي ، لکه: (څه وړاندې وروسته کېږي) (١٥ م ٧٩)
دلته دا ترکیب د تردد او هغې ذهني پرېشانۍ او پرېکړې نه کولو لپاره وکارول شو ، چې د قدم له مخکې اخستو او وروسته کېدو څخه ذهن ته لېږدي، چې مرکب مجاز بلل کېږي.
مجاز د کارونې له مخې پخوانیو لیکوالو په لاندې څلور ډولونو وېشلی دی:
(١) لغوي مجاز.(٢) شرعي مجاز(٣) خاص عرفي مجاز (٤) عام عرفي مجاز.(١٥ م ٨٠)

کنایه: کنایه په لغت کې پټولو او بدلولو ته وایي، چې د تصریح او ډاګیز خلاف دی او په اصطلاح کې هغه کلمه ده چې پر حقیقي معنی سربېره بله معنی هم ترې اخېستل کېږي. (٢٠ م ١٥٤)

کـه څوک وو ایـي چې (د فلانـي لاسونه اوږده دي ) لـه دې جملې څخـه دو اړه معناوې حقیقي ( چې کېدای شي په رښتیا یې لاسونه اوږده وي ) او دویمـه معنـی ( د ځواک زیاتوالی ) چې کنایه ده مراد شي.
د کنایې بحث هم اوږد دی او دلته اصلي موضوع هم نه ده نو ځکـه نـور بحث پرې نه کوم.

په تشبیه ، مجاز او کنایه کې د کلمو د کارولو توپیر

په تشبیه کې هغه کلمه چې د (مشبه به ) په ډول راځي، په خپلـه حقیقـي معنـی کې کارول کېږي، خو د کلمې په دغه حقیقـي معنـی کې ځینې صفتونه دي، چې لـه مشبه سره اړخ لګوي. نو د همغو لپاره یې کارونه سمه او ټیک وي.
په مجاز کې یو کلمه یا ترکیب د (مشبه بـه ) پـه ډول راوړل کېږي ، خو خپلـه حقیقي معنی ځنې نه مراد یږي ،بلکې د یوې بلې مجازي معنـی لپـاره د څه مناسبت له مخې راوړل کېږي، چې کله قرینې یا بلې علاقې ته اړه لري.
په کنایه کې یوه کلمه یا ترکیب په داسې ډول راوړل کېږي، چې خپلـه حقیقـي معنی یې هم مراد یدای شي او د کومې معنـی لپـاره چې کنایـه شوې هغـه هم ترینـه مراد یږي او قرینې ته اړه نه لري.
ایا سمبول د بیان څانګه ده؟
کله چې د وخت جابر ته خبره په څرګند ډول نشي کېدای نو شاعر او لیکـوال اړ وي چې خپـل پیغـام ټولنې تـه پـه یـوه داسـې انـداز وړانـدې کـړي، چې د وخت چارواکي یې له امله ده ته څه ونشي ویلای ، همدې لامل پـه ادبیـاتو کـې ځـانګړي اثار هم رامنځته کړي دي ، د هومر اثار پـه حقیقـت کـې د یـوه جـابر نظـام پـه وړانـدې بغاوت دی او ټولنې ته دا پیغام ورکوي، چې ځانونـه بیدار کړي او پـه یـوه لاس پـه تښتول شوې هلن پسې (چې د منیلاس ښځه ده او پـاریس نومی یې د ټرای ښـار تـه تښتوي ) و ګرځي مبارزه وکړي څو یې لاس ته راوړي.
د (کلیله و د منه ) هم د مو خې لـه مخـې همـدې تـه ورتـه کېـسې دي ،چې دوې ګیدړې یې په خپل منځ کې کوي. د هرې کېسې پیغـام یـې لـه یـو جـابر نظـام څخـه د

خلاصون فکر دی. په دې کېسو کې ځناور د سمبولونو په بڼه لوبېږي او د یو وحشي نظام څرګندونه کوي.

دغو سمبولونو په معاصر ادب کې یو نوی رنګ واخیست او ځینې کلمې او ترکیبونه په ځانګړې ډول (کلمې) د سمبول په بڼه په ادب کې وکارول شوې. همدا و چې په غرب کې یو مکتب د سمبولیزم په نامه منځته راغی.

زموږ په ادب کې دا سمبولونه په دوو ډولو دي، یو هغه چې د قرار داد او عاموالي په بڼه په عرفاني ادبیاتو کې کارول شوي دي، چې په فارسۍ او پښتو ادب کې مشهور دي ، پخپله چې چا کارولي بیا یې معنی هم را په ګوته کړې ده او دیو ټاکلي مقصد لپاره و ، چې یوازې صوفیان یا پوه خلک پرې پوهېدل لکه:

- وروځې یا ابرو چې د محبوب له خوا د غیبي اشارو او الهام معنی ورکوي.

وروځـې د خوبانو که یې ولیدې په سترګو
زر به مشایخ پسې محراب و ممبرمات کا
(۲٤ م ۱۱٥ )

- پیاله ، پیمانه یا ساغر د غیبې انوارو لپاره علامت دی:

ما د دهر غم وهلی دی په لته
د پــیالــې د صـراحي له برکته
(۲۳ م ۲٥۹ )

- جفا د سالک زړه له مشاهدې څخه د بندولو په معنی دی:

که ته سل ځله له ما سره جفا کړې
ستا جفا واړه وفـــا ده جفا نه ده
(۲۳ م ۲۷۱ )

- خوله او شونډې ، له محبوب سره راز او نیاز او حیات صفت دی:

ستا دې خواب الودو سترګو خواب را څخه یووړ

لــــبو دي لـــــذت د مــــــى نــاب را څخه يوور
(۲۳ م ۱٦۱ )

پورتني او په دې ډول ډېر نور علامتونه (سمبولونه) دي، چې په قرار دادي بڼه په عرفاني ادبياتو کې کارول کېږي.

ددې تر څنګ يو ډول نور سمبولونه دي چې هغو ته شخصي يا ځانګړي وايي. دا نو د لويو شاعرانو کار دی چې يوه کلمه څنګه د سمبول په بڼه وکاروي.

يوه خبره بايد د ټولو په ياد وي، چې لومړی تشبيه ورپسې استعاره او بيا د سمبول ځای ټاکل کېږي، چې دا يو په بل پسې يو له بله راوتلي برېښي.

په تشبيه کې (مشبه) او (مشبه به) دواړه راوړل کېږي او وجه شبه يې هم يو يا څو صفتونه وي خو ګټه يې مشبه ته نېغ په نېغه ده.

کامل احمد نژاد ليکي: (... در تشبيه لفظ در معنی حقيقی به کار برده می شود. وا غلب مقصود از آن مبالغه در مدح يا ذم و يا بيان ماهيت و حقيقت چيزی ناشناخته است با تشبيه آن به چيزی اشنا تر و شناخته تر. ) ) (۱ م ۸۵ )

په استعاره کې يا (مشبه) يا (مشبه به) راوړل کېږي ، د قرينې له مخې يې (وجه شبه) چې (وجه جامع) ورته وايي ټاکل کېږي ، دلته بيا هم مشبه يا مشبه به يوه مشخصه معنی ده. ددې لړ پر مختللی شکل بيا سمبول دی، چې په دې کې مشبه به راوړل کېږي ، خو مشبه يې ټاکلی نه وي نه داسې قرينه وجود لري، چې مشخصه معنی ترې مراد شي او نه داسې مشخصه وجه شبه د مشبه او مشبه به تر منځ وجود لري، چې ووايو ددې مشبه به، فلانی مشبه دی ، بلکې په سمبول کې مشبه به، په ګڼو مشبه وو قياسېږي او يو ټاکلی مشبه ترې د قرينې يا وجه شبه په سبب نه مرادېږي ، همدا ځای دی، چې د داسې کلمو کارولو ته په اوسني ادب کې سمبول وايي، چې اوربدونکی يکې د خپلې خوښې مشبه وټاکي. غواړم چې د بېلګې په ډول څو سمبولونه د معاصر ادب د ځينو شاعرانو له شعرونو څخه راوړم:

غني خان (بلبل او لالا ) د سمبول په بڼه کارولي دي.

بلبل په هیضه مړشو ډېر يې خوښ وو شاتوتان
لا لامـــې سالار نشو اوس يې بدې شي هندوان
(۳۷ م ۱۲۰)

فضل ولي ناګار (زولنې او پاولی) د سمبول په بڼه راوړي:
شـــــرنـــګ د زولنو او د پاولو په تال کې راوله
سرکړه خوا خوږي ناګاره ټول زړونه خواشيني دي
(۲۲ م ٤۲)

بشیر احمد پرهر (د کلي خان) د سمبول په بڼه کارولی دی.
د کلي خان ډم ته ويل چې نغاره ووهه
ما او جانان د لېونو په زنځيرونو تړي
(٦ م ۲۷)

اجمل اند (لېونی) د سمبول په بڼه راوړی دی:
غواړي خو ټوله بس غېږ ورته راوڅرخوي
خـــو بيا يوه خندا شي بس د لېوني لپاره
(۲ م ٥)

## تشببه

تشببه په لغت کې د یو شان کولو ، یوشی د بل شي غوندې کولو او د ورته والي په معناوو کارېدلې ده. (۸ م ٦٧٤٤ ).

یا تشببه په لغت کې په یوه معنی کې د دوو څیزونو ګډون دی، چې همدې ګډې معنی ته یې وجه شبه وایي. (٢٦ م م ٢٠ او ١٢ )

د بیان د علم په اصطلاح ، تشببه یو شی له بل شي ، یو نوم له بل نوم یا یو حالت له بل حالت سره ورته کولو ته وایي ، په دې شرط چې ددواړو خوا وو ( مشبه او مشبه به ) تر منځ یې یو یا څو مشترک صفتونه موجو وي.

محمد رضا شفیعي کدکني د تشببه په اړه لیکي: (( علم بیان شیوه ادای موضوع و معنی به اسلوب های مختلف است، و تشببه بی گمان در راس این اسالیب قرار می گېرد و شاید تشببه روشن ترین و آشکار ترین این مباحث باشد و از همه ، در تمام ادوار ، بیشتر استعمال و کار برد داشته باشد ، وبی جانیست اگر نویسند گانی مانند (مبرد ، ابو هلال عسکری ) در باره اهمیت آن سخنهای اغراق آمیز گفته اند از قبیل اینکه: ( هیچ ادیبی از ان بی نیاز نیست ) یا اینکه: بیشتر کلام عرب تشببه است. )) (١٧ م م ٤١ )

## د تشببه رکنونه

د تشببه بنسټیز رکنونه ( مشبه او مشبه به ) دي ، چې بې له دوی تشببه نه بشپړېږي. ددې تر څنګ دوه نور رکنونه ( د تشببه توري او وجه شبه ) هم لري چې کله په کلام کې څرګند راوړل شوي وي او کله نه وي راوړل شوي.

محمد طاهر فاروقي په خپل اثر ( فصاحت و بلاغت ) کې پر پورته څلورو رکنونو سربېره یو بل رکن (د تشببه غرض ) هم ورزیات کړی چې دی د همدې له امله د تشببه رکنونه پنځه ګڼي.

((په هره تشببه کې پنځه څیزونه وي: ( مشبه ، مشبه به ، د تشببه توری ، وجه تشببه ، د تشتببه غرض ) دې پنځه واړو ته د تشببه ارکان وایي او مشبه او مشبه به ته د تشببه طرفین وایي. )) (٢٥ م ٢٠ )

ما چې په دې اړه څومره کتابونه او څېړنې لیدلي د ټولو د کار په پایله کې همدا څلور رکنونه (مشبه ، مشبه به ، وجه شبه او د تشبیه توري ) په ګوته شوي دي او چا هم د تشبیه غرض د رکن په نامه نه دی راوړی.
١ - مشبه: هغه څوک، شی یا حال چې له بل چا ، شي یا حال غوندې ښودل شوی وي.
٢ – مشبه به: هغه څوک ، شی یا حال چې بل څوک ، شی یا حال له ده سره ورته شوی وي.
٣ – د تشبیه توري (ادات) : هغه کلمې چې د هغوی په شتون د مشبه او مشبه به تر منځ اړیکې ټینګېږي، چې په خپل وار به پوره بحث پرې وشي.
٤ – د تشبیه وجه: هغه ګډ صفت یا صفتونه دي، چې د مشبه او مشبه به تر منځ شتون لري ، په دې برخه به هم په خپل ځای کې یادونه وشي. اوس د بېلګې په بڼه په یوه بیت کې پورته رکنونه په نښه کوو.

یـــو لوری مې نشته مینې هسې سرهوا کړم
باد غوندې خوشحاله ! په هزار طرفه درومم
(٣٤م ١١٥)

١ - مشبه: متکلم
٢ – مشبه به: باد
٣ - وجه شبه: په هر لور په خپل سر تلل
٤ – د تشبیه توری: غوندې

د تشبیه توري (ادات )

د تشبیه د تورو په اړه مجاور احمد زیار لیکي:

(( هغه وییکي دي چې د دوو یا زیاتو څیزونو یا پدیدو ورته والی او مشابهت ښیي. لکه: غوندې ، په څېر ، په رنګ ، په شان ، په دود ، په ډول ، په راز..... )) (۱۲ م ۱۳۰ )

صدیق الله رښتین یې په اړه لیکي:

(( په پښتو کې یو شمېر کلمې شته ، چې د دوو څیزونو یا معناوو د ورته والي (تشبیه ) په غرض استعمالېږي ، په لاندې ډول دي: په څېر ، په شان ، په رنګ ، په دود ، دا راز ، دا خېل ، دارنګ ، دا ډول ، ته به وایې ، لکه چې ، دغسې ، هغسې ، داسې ، هسې شانته ، ورته او نور.... )) . (۲۷ م ۳۷۹ )

همدارنګه ښاغلی عبدالروف بېنوا په خپل اثر ادبي فنونو کې لاندې توري له بېلګو سره راوړي ، خو یوازې د (ورته ، وایې، ته چې وایې او تابه ویل ) تورو بېلګې یې په نظم کې نه دي راوړي: (( د تشبیه توري په درې ډوله دي. توري ، نومونه او فعلونه.

۱ –توري: لکه ، غوندې ، دود ، ورته

۲ - نومونه: شان ، څېر ، سیال

۳ - فعلونه: ته وا ، ته به وایې ، وایې، ته چې وایې ، تا به ویل )).( ۴ م م ۲۳ او ۲٤ )

د تشبیه د تورو په اړه پورتنی وېش د سید احمد هاشمي په دې لیکنه ولاړ دی: (( د تشبیه توري ځینې نومونه ، ځینې یې فعلونه او ځینې یې حرفونه دي. ))
(۹ م ۲۷۸ )

په پښتو ادب کې د تشبیه توري خورا ډېر دي چې د ټولو راوړل یې موضوع اوږدوي. دلته به د بېلګې به ډول هغه راوړو ، چې خوشحال خان ختک په خپلو غزلو کې ترې کار اخیستی دی:

۱ –لکه:

جدايي زما په زړه کا هسې چارې
لـکه بازيې په تارو يا په دراج کا
(٣٤ م ٢)

٢-غوندې:

د بـــازيـــو دې موندلی يم غلوه مې
د هلک غوندې ربښتيا ګڼم مذاق ستا
(٣٤ م ٦)

٣-څېر:

آيــينې وتــه نظر کړه ګل به څه کړې
چې خپل مخ د ګل په څېر د رسره شته
(٣٤ م ٢٦٥)

څوک دی چې د لمر خوبي د ستا د مخ په څېر کا
لــمر مـــــثال څراغ دی ستا جمال لکه صباح
(٣٤ م ٤٤)

٤-هسې:

مـــا توه د خوشحال زړه بيا به ووايې !
چې مې څه لره دا هسې ګوهر مات کړ
(٣٤ م ٧٢)

٥-شماره:

چـــې دا در بې بها هسې تلف کا
د څارويو په شماره دی هغه کس
(٣٤ م ٨٤)

زه چـــې تـــل د لـــېونيو په شماره وم
بيا له کومه په ساعت کې فرزانه شوم
(٣٤ م ١٥١)

٦-مثال:

په بهاندو اوبو کښېښه نند اره کړه
د جـــهان د تېرېدلو دا مثال بس
(۳٤ م ۸۵)
ښــــه ليدل يې په مثال آب حيات دی
دا تشنه خاطر به کله پرې سېراب کړم.
(۳٤ م ۱۲۲ )

۷- ساری:

چې شاهان ځوانان مې و مړل هاله مرد يم
کـــــه د هر يوه مې ساري سل ډمان کړل
(۳٤ م ۱۱۲ )

۸- برابر:

کــــه هــــر څو د بهار گلونه ښه دي په چمن کې
يو گل به په ښايست کې ستا له مخه برابر کړم؟
(۳٤ م ۱۱۹ )

۹- دود :

کــه د پښو خبری يې نه يم باري شکر
چې د گرد په دود يې ښتې په لمن يم
(۳٤ م ۱۲۳ )

۱۰ - مثل:

جهان يو کتوری شو زه په مثل د ميږي يم
حيران پکې جارو زم لاس و پښې پکې وهم
(۳٤ م ۱۲۸ )

۱۱ – سار:

چـــــې د حضر ترې مايه ده
چشمه سار دی ستا د شونډو
(۳٤ م ۱۷۵)

۱۲ –زه به وايم:

که د سپيـو د کودي اوبه يې مومم
زه به وايم چې په تن آب کوثر خورم
(۳٤ م ۱٤۰)

۱۳ –تر:

چې يې زړه تر کاڼې سخت هغه مې يار دی
بـــدې بـــــخرې ! څه زما کاڼی په کور شو
(۳٤ م ۱۸۲)

۱٤ - نظير:

چې د کښلي زيبا مخ نظير دې غواړم
پـــــه نور څه مې نظر نشي بې افتابه
(۳٤ م ۱۹۳)

۱۵ - رنګه:

د ګلونو پـــه مـــــوسم کې هغه خوار شول
چې ګل رنګه معشوقه يې تر څنګ نه ده
(۳٤ م ۲۷٦)

۱٦ - ګوندې:

چې بوسې د جفا جويو د خولې اخلي
ګـــــوندې اخلي له باغيانو قلنګونه
(۳٤ م ۲۵٤)

۱۷ – وار:

مخ نسرینه مه جبینه
سنبل مویه پرې واره
(۳٤ م ۲۱۱)

۱۸ – برابري:

ته یې چې له مخ سره نن شپه برابري کړې
شـــمعې !دا د عـــوه تر سبا یو سه برابره
(۳٤ م ۲۱۷)

۱۹ – شان:

په بـــشر دې رنګارنګه تګې ګوره
په دا شان به ښایسته نه وي لو ځکه
(۳٤ م ۲۲۹)

۲۰ - ښکارېږي:

که له یاره نه جدا وي دوه درې لو ښتې
و عـــاشق و ته ښکارېږي دوه درې میله
(۳٤ م ۲۳۵)

۲۱ - ماوې:

څه خو را ښکاره شوه په ځنبل د سترګو لاړه
مــــاوې د اسمان بر ښنا ده نه مې پېژندله
(۳٤ م ۲۳۵)

۲۲ - سیال:

چـــې دې هـــومره ډېر د ماغ وته وګورم
بل دې سیال په جهان نشته بې بادشاهه
(۳٤ م ۲٦٦)

۲۳ – عین:

د مـــجاز عاشقي عين حقيقت ده
و معنو ته زینه ایښي د صورت ده
(۳٤ م ۲۷۷)

۲٤ – ته به وایې:

ته بـــه وایـــې حـبـشي شـــکرې پـــېرې
هغه خال یې چې د دوو شونډو ترځنګ دی
(۳٤ م ۳٤۳)

۲٥ – مخی:

زه بـه مخ دیار مخی نه کړم د واړو
کـــــه ګلونه سراسر دي ښایسته
(۳٤ م ۳۰۰)

۲٦ – حساب :

د عـــــــاشق د ریـــــښتنې نــــښه داده
چې په عشق کې سرحساب کاندي خځنې
(۳٤ م ۳٤۹)

په ګني کې چې صفت د ګني نـــه وي
د ځنګله له خالي نی سره حساب دی
(۳٤ م ۳٥٤)

۲۷ – زه وایم:

هر چې ته یې ولیدې په تایې زړه بای نه کړ
زه وایـــم سړي نه دي هغه به هم د واب وي
(۳٤ م ٤۱۰)

۲۸ – سم:

دا ګــلزار لـه هېڅ ګلزار سره سم نه دی
چې زلفینې په سپین مخ را ته خم خم کړې
(۳٤ م ٤٤٤)

۲۹ – سا او خا

چې په زلفو عنبر سا ده هغه ته یې
چې په شونډو شکر خا ده هغه ته یې
(۳٤ م ٤٦٨)

۳۰ - اسا:

چې اثر مې د ژړا ورباندې نشي
چې په زړه حجر اسا ده هغه ته یې
(۳٤ م ٤٦٩)

۳۱ – ګڼم:

په جهان کې که تر مرګه ګران څه نشته
زه تـــر مرګه لا بتر ګڼم هجران ستا
(۳٤ م ۳۲)

۳۲ – نسه:

دا زمـــا زړګی په خپل زړګوټي نسه
چې دې زړه وي زما زړه هم هسې کسه
(۳٤ م ۲۲۱)

۳۳ - ګون:

دا ګـــلګون شراب د کومې میخانې دي
چې صوفي یې په جرغه سره مدهوش دی
(۳٤ م ۳۱۸)

٣٤ – وش:

بې له ځانه په بل چامې پېرزو نشي
چـــې کاته د مهوشانو په دیدار کړم
(٣٤ م ١٣٢)

د جنون برخه مـــې اوس نه ده ځايي ده
چـــــې مـــين په هغه ښکلی پريوش يم
(٣٤ م ١١٦)

د تشبیه وجه

جلال الدین همایي لیکي: (( وجه شبه چنانکه گفتيم صفت مشترک مابين مشبه و مشبه به است. اما در هر مورد ، آن صفتی است که منظور گوینده باشد و از این جهت است که در مورد مدح و ستایش یا هجو ونکوهش و همچنین در مورد سخن جدی یا کلام شوخي و فکاحي وجه شبه مختلف می شود.... )) (١١ م ٢٢٨)

د مشبه او مشبه به تر منځ د ترون پوخوالی په وجه شبه پورې تړلی دی ، خو یوې خبرې ته پام په کار دی چې کله موږ یو ځیز له بل ځیز سره تشبیه کوو دا ضروري نه ده، چې په ټولو صفاتو کې دې یو شان وي بیا خو د تشبیه ضرورت نه پاتې کیږي مثلاً موږ یو انسان له بل انسان سره د ښې له مخې تشبیه کوو، دا خو ټولو ته معلومه ده چې هر انسان د شکل له مخې د بل انسان غوندې وي او همدا ډول که چرته دواړه اړخونه ( مشبه او مشبه به ) سره بېل بېل ځیز وي نو د دواړو ترمنځ به یو یا دوه داسې صفتونه راغلي وي ،چې د تشبیه وجه ترې راوځي، نه هغه ټول صفتونه چې په یو بل کې دي.

موږ یو ځوک له زمري سره تشبیه کوو دلته یوازې د دوی تر منځ زړورتیا ده ، یا یې له ګیدړ سره تشبیه کوو. دلته یوازې مراد بې زړه توب یا کېدای شي هوښیاري وي. همدارنګه یو ځوک له ګل یا چنار سره تشبیه کوو چې مراد به سور والی یا نازکوالی او لوړولی وي.

موږ ځینې وجه شبې د ذوق په وجه راوړو لکه سترګې له نرګس او یا بانه له غشو سره.

کله وجه شبه د وو کسو یا دوو ځیزونو لپاره په عین وخت کې خپله ضد معنی ښندي لکه موږ یو تنبل نالایق کس ته د افلاطون خطاب کوو. افلاطون هغه څوک دی چې په علم کې شهرت لري او دلته یو تنبل غبي او نالایق ورسره تشبېه شوی، چې دلته له وجه شبه څخه د هغه مخالفه معنی یعنې جهالت اخیستل کېږي.

په هر صورت و جه شبه باید د (مشبه او مشبه به ) تر منځ قوي پیوند ولري چې د تشبېه کارول یې سم وبرېښي.

د پورتنیو خبرو په بنسټ پخپله وجه شبه ددې علم پوهانو په څو ډوله بیان کړې ده چې دلته یې راوړل اړین برېښي:

۱ – تحقیقي وجه شبه: هغه وجه شبه ده چې د ورته والي وجه یې تر څه حده د تشبېه په دواړو خواو کې په حقیقي بڼه شتون ولري. دا چې یو شاعر یو ځیز له بل ځیز سره تشبېه کړي او همغه وجه شبه یې موږ ومنو لکه د شونډو یا اننګو تشبېه له سره ګل سره چې همدا سوروالی تر څه حده په شونډو او اننګو کې شته دی. ( ۲۸ م ٤۲ )

نوموړې وجه شبه ته ځینو حسي وجه شبه هم ویلي ده ، بېلګه یې په لاندې بیت کې ګورو:

چې شونډو ته دې ګورم تر یا قوتو لا تېری کا
چې زلفو ته دې ګورم په عـــــنبرو مـعتبر ې
(۳٤ م ٤٦٦ )

په پورته بیت کې شونډې له یاقوتو سره په سره والي کې تشبېه شوي او همدارنګه زلفې له عنبرو سره په خوشبویي کې تشبېه شوي دي ، چې د دواړو تشبېه ګانو په دواړو طرفونو کې د سوروالي او خوشبویۍ اصل پروت دی ، چې په دې بنسټ یې حقیقي وجه شبه ګڼلای شو.

۲ – تخییلي وجه شبه: دا هغه وجه شبه ده، چې د تشبېه په دواړو خواوو یا یو طرف کې د تشبېه راتلل خیالي او ادعایي وي ، یعنې د واقعاتو په نړۍ کې دا سې شی حقیقت ونه لري ، لکه د ګونګې ژبه له سوسن سره تشبېه کول په دې اعتبار چې د ادبي حقیقت له مخې سوسن ژبه لري اما د ویلو توان نلري. (۲۸ م ٤۲ )

دا سړی دی چې په عقل کې سړی دی

دا سړي دي چې په عقل کې ددان شي

(٣٤ م ٤٢٤)

د پورته بیت په دویم نیم بیتي کې یې سړیو ته د عقل په بنسټ له د د سره تشبېه ورکړه، چې د ادب په اعتبار یې منلای شو چې یوه ادعایي او خیالي تشبېه ده، ځکه دد عقل نلري.

په درست عمر یې مهر د سکوت په خوله وهلی

زمـــا د زړه توتي دی چې نن ګورمه ګویا شو

(٣٤ م ١٨٦)

زړه (مشبه) او توتي (مشبه به) زړه په شاعرانه منطق ګویا کېږي، چې په حقیقت پورې تړاو نلري ، نو ځکه یې تخییلي وجه شبه بولو.

٣ - دوې ګونې (استخدامي) وجه شبه: کله وجه شبه له مشبه سره د اړیکې له مخې یوه معنی او له مشبه به سره د اړیکې له مخې بله معنی لري. یو ځل حسي او بل ځل عقلي وي.

په دې شکل سره کلام ډېر ښکلی او هنري کېږي. (٢٨ م ٤٣)

که چېرته پورتنی اصل په وجه شبه کې موجود وي دوې ګونې وجه شبه ورته وایي.

زړه لري د کاڼي په خوشحال باندې پوست نه شو

ځـــه شـــو که د خولې خبره کړي چېرې پسته

(٣٤ م ٣٠٤)

(پوست) وجه شبه ده چې دوې معناوې (عقلي او حسي) لري. له زړه (مشبه) سره په اړوند یې معنی رحم او کرم ده او له کاڼي (مشبه به) سره په اړوند یې معنی د کلک ضد (نرموالی) دی ، چې کرم او رحم عقلي او نرموالی حسي دی.

٤ – مفرده وجه شبه: که چرته د مشبه او مشبه به تر منځ ګډه وجه تر یوه صفت ډېر نه وي او همدا رنګه وجه شبه له ګڼو خواوو څخه ترکیب شوې نه وي مفرده وجه شبه ورته وایي. (٢٨ م ٤٣)

د وصال په وخت مې قد لکه الف وي

پـه هجران کې لکه نون شو ښه چې شو

(۳٤ م ۱۸٤ )

په پورته بیت کې (قد ) له (الف) سره تشبیه شوی ،چې وجه شبه یې ایکې یوازې (نیغوالی) دی او بیا د هجران په وجه شاعر خپل قد له نون (ن) سره تشبیه کړی ،چې وجه شبه یې یوازې (کږوپوالی او کوږوالی ) دی او بل څه ترېنه نه شي مرادېدای.

٥-متعدده وجه شبه: هغه وجه شبه ده، چې د مشبه او مشبه به تر منځ یې ګڼ صفتونه تر یوه زیات وي. (۲۸ م ٤۳ )

د ښه مخ خوبي دې ښه تر لاله ګل ده

په زړه هم سختي لري تر سنګلاخه

(۳٤ م ۲۰٥ )

په پورته بیت کې مخ له لاله سره تشبیه شوی دی، چې وجه شبه یې ( سوروالی او نازکوالی ) دی ځکه ورته متعدده وجه شبه وايي.

په دویمه مسره کې یې زړه له (سنګلاخ) سره تشبیه کړی چې یوازې (کلکوالی) یې وجه شبه ده، چې د مفردې وجهې شبې بېلګه یې بللای شو.

٦ - مرکبه وجه شبه: که وجه شبه د ذهني انځور یو مرکب جوړښت وي، چې له ګڼو کلمو څخه د یوې تابلو په بڼه منځته راغلې وي یا په بله وینا هغه تابلو او انځور دی ، چې له ګڼو رنګارنګو جزیاتو څخه لاسته راغلی وي. (۲۸ م ٤۳ )

لکه پټ سواره د جنګ نېزې په غاړه

دا اوږده بانه پرې پورې سترګې ستا

(۳٤ م ۱۱ )

په پورته بیت کې یوه مسره د بلې په وړاندې په ترکیبي بڼه مشبه او مشبه به واقع شوې ده ،چې وجه شبه یې هم ( د جنګ لپاره د عسکرو په پټه ډول تیاری) دی.

تور اوربل دې په سپین مخ را آشفته شو

ســــمن زار دې په سنبل کې نهفته شو

(۳٤ م ۱۸۰ )

لومړۍ مسره مشبه او دويمه مشبه به او وجه شبه يې د دواړو څخه راوتلى يو
کيفيت دى.
٧ - عقلي وجه شبه: که چرته وجه شبه د عقل يا نفسياتو د څرنګوالي پواسطه ذهن
ته راشي او په څرګند ډول ذات ونلري ،عقلي وجه شبه يې بولي. (٢١م ٩٣)

عـــــقل ســــــل د مصلحت بندونه جوړ کا
چې د عشق سيلاب پرې راشي واړه نوړ کا
(٣٤م ٣١)

دلته مصلحت ته له بند سره تشبيه ورکړل شوې ده، چې وجه شبه يې (له يو
کارڅخه مانع کېدل ) دي ، عقلي بڼه لري او عشق ته له سيلاب سره تشبيه ورکړل
شوې ده، چې وجه شبه يې (لوى والى ، بربادي او تباهي ده ) چې د نفساني
څرنګوالي ښکارندوى ده.

د زمري په خوى پـــــيداشي ځينې زويه
ځينې غواړي د ګيدړ غوندې خپل قوت
(٣٤م٣٨)

په لومړۍ مسره کې يې زوى له زمري سره تشبيه کړى دى، چې وجه شبه يې
(په خپل مټ د پاتې کېدلو او ښکار کولو ) خوى دى ، چې عقلي يا د معنى وو له
ډلې څخه دى.

د تشبېه زاويه

د مشبه او مشبه به تر منځ د ذهن د رسېدو فاصلې ته د تشبېه زاويه وايي چې په دوه ډوله ده:

الف- پراخه زاويه: هر څومره چې د مشبه او مشبه به تر منځ د وجه شبه د پېژندلو زاويه پراخه وي يعنې د دواړو خواوو تر منځ تړون په مشکله ذهن ته راشي هماغو مره تشبېه هنري ده او په اصطلاح هغې ته غريبه تشبېه وايي. لکه شراب له لمر سره تشبېه کول (۲۸ م ٤٨)

بېلګې يې دادي:

د شرابو خوښي هېڅ نه وي بې نقله
نقل څه دی معرفت عمر شراب دی
(۳٤ م ۱۹۰)

په پورته بيت کې (عمر) ته له (شرابو) او (معرفت) ته له (نقلو) سره تشبېه ورکړل شوې ده ، دا چې ولې يې عمر ته له شرابو او معرفت ته له نقلو سره تشبېه ورکړل شوې ده فکر او سوچ ته اړتيا ده.

ب- تنګه زاويه: څومره چې د تشبېه زاويه تنګه وي يعنې د مشبه او مشبه به تر منځ يې تړون يا ورته والی څرګند او ذهن ته نژدې وي تشبېه هنري نه وي او هغې ته مبتذله تشبېه وايي لکه د زلفو تشبېه له مار سره. (۲۸ م ٤٨)

غريبه تشبېه د هغو شاعرانو لاسته راوړنه ده چې نوښتګر ذهن ولري.

ستا د مخ مخی به نه کړم نور مخونه
نور که ستوري د اسمان دي ته يې لمر
(۳٤ م ٥١)

په پورته بيت کې د مخاطب مخ له لمر سره تشبېه شوی، چې د اوربدونکي يا لوستونکي ذهن ډېر زر د دوی تر منځ په ګډه وجه باندې پوهېدلی شي او همدارنګه د غايبانو مخونه يې له ستورو سره چې وجه شبه يې تر لمر تته ځلا او روښنايي ده چې هر څوک ورته کتلای شي ، خو لمر ته څوک نشي کتلای.

## د تشبیه نوي کول

د تشبیه نوي کول په څو ډوله په ادب کې ترسره کېږي ، کله یوه مبتذله تشبیه د څه شرط په راوړلو یا د تفضیل په بڼه نوې کوي، مثلاً خوشحال خان خټک د خاکسارۍ او عاجزۍ لپاره دلیل دا راوړي، چې په خاورو کې ګلونه زرغونېږي، نو که څوک خاکساري وکړي او ځان د خاورو په مثال کړي د ګلونو په څېر اعمال به دده شخصیت ښکلی کړي.

تــــرې بــــــه سل رنګه ګلونه زرغونه شي
هرسړی چې خاکساري واخلي ځان خاک کا
(۳٤ م ۹)

همدا موضوع بیا رحمان بابا د یو ې پوښتنې په مطرح کولو نوې کوي.

زه دې پېژنم په اصل کې خاکي یې
ځـــان به څو څنډې په ګوته له تراب
(۲۳ م ۲۵۷)

بل ځای خوشحال خان خټک وایي:

لوړې لنډې نو روز ده خوشحال ده غوره کړې
نــــــه لــــــوړه نه لنډه په قد ښه روغه وسط
(۳٤ م ۲۲٦)

عبدالرحمن بابا نوموړې خبره شرطیه کړې:

چې مې قد دیار دراز او نه کوتاه دی
رحمان واخیسته په لاس ځکه اوسطه
(۲۳ م ۲۹۳)

خوشحال خان خټک وایي:

تورې وروځې یې لیندې بانه یې غشي
د عــاشق تر زړه یې تللی هر خدنګ دی
(۳٤ م ۳٤۳)

پیر محمد کاکړ د پوښتنې په بڼه نوی کوي:

وې مې وروځې دې لینده بانه دې څه دي
وې نــــاوک دي د عاشق پر زړه څرخېږي

(۱۶ م ۱۹۲)

خوشحال خان خټک وايي:

تـــه بــــــه وايـــي د ګلاب په ګل شبنم دی

چې بار خودې د نماستي په وخت خولې وي

(۳٤ م ۳٦٥)

عبدالقادر خټک بيا دا خبره د قهر په راوړو نوې کوي:

تــــــه به وايې په ګلابو شبنم پرېوت

چې له قهره يې خولې شي رخسارونه

(۳۰ م ۲۳۲)

بل ځای خوشحال خان خټک شونډې له شکرو سره تـشبيه کوي او پـه عـادي بڼه يې راوړي:

که يې تل لکه شکر خورم کم به نشي

ســـتا د دواړو خـــوږو شونډو از زما

(۳٤ م ۲۱)

بل ځای بيا همدا تشبيه د تفضيل په بڼه راوړي، چې يو ډول نويوالی پکې را شي:

خــوند د شهد د شکرو راته هېڅ دی

څو مې ياد د هغو شونډو مکيدن دی

(۳٤ م۳٤٥)

د تشبیه او تمثیل توپیر:

د ځانګړیتوب او عمومیت له مخې د تشبیه او تمثیل تر منځ توپیر موجود دی یعنې هر تمثیل تشبیه ده او هره تشبیه تمثیل نه دی. په تمثیل کې هغه څه چې شاعر یې ادعا کوي د یو مثال په راوړلو روښانوي ، چې د مدعا مثل په نامه یې هم یادوي. (۲۱ م ۸۳)

بې اخلاصه د یارۍ څه جواز نشته
خود پوهېږې بې اودسه نماز نشته
(۳٤ م ۲۵۷)

په پورته بیت کې شاعر د یارۍ لپاره اخلاص اړین بللی دی ،چې د مثال په ډول یې ورته د لمانځه لپاره اودس راوړی دی.

د تشبیه غرض

په نړۍ کې هر کار کول، د یو غرض لپاره وي ، تشبیه هم بې غرضه نه ده، بلکې د ډېرو غرضونو لپاره یې شاعران او عام وګړي په خپلو ویناوو کې کاروي ، خو په دې خبره پوهه د شاعرانو لپاره ډېره ارزښتمنه ده ،چې د هغو د تشبیه غرض دې ټاکلی وي ګنې بیا به پخپله د خپل شعر په معنی نه پوهېږي. اوس به د تشبیه د غرض څو ډولونه راوړو.

۱ - د ناممکن مشبه ممکن کول: که چرته مشبه په څرګنده عجیب او نا ممکن وي له داسې مشبه به سره یې تشبیه کوو ، چې په شتون کې یې هېڅ شک نوي ، هغه عجیب او نا ممکن شی د لوستونکي یا اورېدونکي په ذهن کې ممکن او شونی شي. (۲۱ م ۱۱۲)

هر څه په تا وینم خــــو تــا نه وینم نظر یې
اوسې مې په سترګو کې له سترګو یې فنا
(۳ م ۷۲)

دلتــه مخاطب مـشبه دی ، چـې شـاعر یـې دلیـدو وړتیـا نـه لـري ، دی دغـه ناممکن شي ته له نظر سره تشبیه ورکوي او خپله دعوه د ممکن تر حده رسوي ځکه چې نظر هم په سترګو کې وي خو نه ښکاري او د مخاطب حال هم همدا دی.

په ماڼۍ يې هم خوشحال شم هم دلګير شم
لکه څــوک چـــې له چا شکر وشکايت کا
(٣٤ م ٣)

دلته د خوشحالۍ او د لګيرۍ په يو ځای د جمع کېدو امکان يې له چا څخه د شکر او شکايت په راوړو ممکن کړ.

په هومره ډېر مقتوله ته لا هم نه يې ملوله
کـــــه سل خونونه وکا د جلاد ترو څه پروا
(٣٤ م ٥)

له يو چا معمولي ګناه يا خطا وشي حتماً خفه کېږي، خو دلته سره له دې چې مخاطب ډېر قتلونه کړي بيا هم خفه نه ښکاري ، شاعر د دې خبرې امکان د جلاد په کلمه امکان ته رسولی دی.

٢ – د مشبه د حال بيان: کله چې شاعر وغواړي د مشبه د حال څرنګوالی وښيي دا په هغه وخت کې امکان لري، چې د مشبه به د حال څرنګوالی مخکې تر مخکې ټولو ته روښانه وي. (٢١ م ١١٣ )

کله دا حالت د صفت او موصوف په بڼه وي او کله مشبه به په انځوريزه بڼه راغلې وي.

مبتلا بلبله سر د ګل په پښو ږدي
لکه برهمن د بت ، بت پرستي کا
(٣٤ م ٢٦ )

که دې زړه وي چې به زړه د خوشحال ګورم
راشــــه وګـــــوره پــــه اور ايښی کباب
(٣٤ م ٣٤ )

٣ - د حالت د مقدار بيان: کله د شاعر غرض د مشبه مقدار او شمېر وي په دې سره د مشبه څرنګوالی او قوت يا کموالی او ضعيفوالی څرګندوي.

چې کرم نه وي له خدايه فتح نشته
کـــــه افزون شي تر ملخ سپاه د چا
(٣٤ م ١١ )

پورته يې د شمېر له مخې (سپاهيان) له ملخو سره تشبيه کړې دي.

د جهان غمونه یو سر زما بل سر
کـه سړی یې د باور پـه تله تول کا
(٣٤ م ١٣)

په پورته بیت کې شاعر د خپلو غمونو اندازه د تلې پـه یوه پله کې او د ټول جهان غمونه یې په بله پله کې سره تشبېه کړي دي.

و اشـــــــنای وته دیارمینه څرګنده
لکه قصد چې له ډیوې سره پتنګ کا
(٣٤ م ٣٣)

دا عالم ریګ روان دی که یې ګورې
خو هم هسې سره اوړي لاندې باندې
(٣٤ م ٤٣٠)

د اوربل په هر هر پیچ کې یې نافې دي
مـــــشاطه یې چې پرانیزي پیچ و تاب
(٣٤ م ٣٥)

لکه ستا بانه په شمار په حساب نه دي
هـــسې ستا د سترګو ډېر دي ستمونه
(٣٤ م ٢٤٣)

٤ – حیرانول: کله شاعر د حیرانتیا صفت د تـشبېه پـه وسیله مـشبه تـه ثابت کـړي. ددې لپاره شاعر مشبه له هغه مشبه به سره، چې د شاعر په ذهن کې یې رغېدلی وي او په بهرنۍ نړۍ کې وجود ونه لري ورته کوي.

په مخ ډېره ښایسته یې نوم دې څه دی ؟
دعـــــــــــا شق د ځان بلا فتنه اشوب
(٣٤ م ٣٥)

په پورته بیت کې مخاطب ځان له فتنې او اشوب سره تشبیه کړی، چې په ځرګند ډول وجود نلري.

چې محراب یې د ابرو راته ښکاره شو
هغه دم مې ناره وکړه قد قامت
(۳٤ م ۳۷)

۵-د مشبه تحسین او تعظیم: دا طبیعي خبره ده چې هر څومره مشبه به ډېر ښکلی او د اوچتې پایې وي دا غرض هم ښه لاسته راځي.

ګل د لاله ښه دی راته وایه که بار خومې ؟
ستا زیبا بار خو به له ګیاه کړم برابر
(۳٤ م ٦۰)

٦-خلکو ته د مشبه بدۍ او خرابۍ ښودل:

د دنیا یاران مې ولیدل په سترګو
هر سړی زما په سترګو لکه د دشو
(۳٤ م ۱۸۳)

د نکبت ورځې په مثل د دانو وي
ښایسته سړی وباسي له ښایسته
(۳٤ م ۱۹۹)

که هر څو ښایسته یې نه یوسف یې د کنعان
که هر څو هوښیار یې نه مخی یې د لقمان
(۳٤ م ۱٦۳)

۸-د مشبه ستاینه: کله د شاعر غرض د مشبه ستاینه وي او په ډېرو شعرونو کې همدا غرض په پام کې نیول شوی وي.

ګل د لاله داغ لري سختي د رامبېل پاڼې
چاوې چې لاله دی یا رامبېل دی ګلعذار ستا
(۳٤ م ۳۱)

د زلفینو ترنګهت یې ګل شرمېږي

د خــولو تر بوی یې نه ر سي ګلاب

(۳٤ م ۳٥)

چې مې ولیدو په سترګو ستا ښایست

ښـــــا پـــــیریو سره نشته دا ښایست

(۳٤ م ۳۸)

۹ – د مشبه مقابله او موازنه: کله په تشبیه کې غرض د مشبه دحالت مقابله او موازنه وي.

واړه شونډې په لذت سره یو نه دي

څـوک حلوا دي دنبا تو څوک اتوب

(۳٤ م ۳٦)

مخ یې کله د لاله غـوندې ښکلا دی

د لاله تر ګل یې ډېر دی لا ښایست

(۳٤ م ۳۸)

ډېـــــر ځوانان چې احمقان دي لکه پیاز دي

وخوشحال ته هوښیار مښک دي پیر فرتوت

(۳٤ م ۳۸)

که د زهرو پیاله وي خو ستا له لاسه

تــــــر عـــسلو به لا ښه وي هغه زهر

(۳٤ م ٥۰)

۱۰ - د خبرې ښـکلا : د خبرې د ښـکلا لپاره شاعران اکثره نادر خیالي انځورونه راوړي، چې د واقعاتو لـه نړۍ سره یې هېڅ تړون نه وي بلکې یوازې یو ښایسته انځور وي. (۱٥ م ۷۸ )

د خـــاطر مرغه مې ستا په زلفو بند شو

اوس به چرته ځي چې ښښتی دی په لومه

(۳٤ م ۲۳۷)

ستا د خیال مېلمه مې ناست دی په ګوګل کې

تــــــل مــــــې خـــوري د زړه د غوښو کبابونه

(۳٤م ۲۵۱)

محمد طاهر فاروقي ليکي: د تشبيه غرضونه ډېر کېدلی شي ، دا چې يو څوک د يو شي تشبيه له بل شي سره کوي، نو په دې کې حتمي يو غرض پوښلی وي ، لکه: ښکلا ، لوړوالی ، عظمت ، توقير ، تحقير ، رعب ، زياتې، کمې،ندرت،مبالغه، د حالت توضيح يا ناممکن ممکن کول او داسې نور. (۲۵م ۲۵)

د پورتني وينا په تاييد زه هم وايم چې د تشبيه غرضونه ډېر دي او هر ليکوال او کره کتونکی يې تر دې نور غرضونه هم په ډاګه کولای شي.

د تشبيه ارزښت

په ځينو خبرو کې د تشبيه ارزښت خورا ډېر دی ، د تشبيه پواسطه کلام د فصاحت او بلاغت مقام خپلولی شي. ډېر ځله يوه خبره لکه څنګه چې يې وينا وال احساسوي هغه شان يې په ساده کلام کې اورېدونکي يا لوستونکي ته نشي ورلېږدولای. همدا تشبيه ده چې ددې پواسطه د محسوسو څيزونو وضاحت په ډېر ښه ډول کېدای شي او همدارنګه هغه څه چې د محسوساتو له کړۍ څخه وتلي وي د تشبيه پواسطه حسي نړۍ ته لار پيدا کولای شي.

د تشبيه يو بل ارزښت دادی چې کلام هنري کوي او کله چې کلام هنري شي په زړه پورې شي. د تشبيه پواسطه يوه موضوع يا مطلب د اورېدونکي په ذهن کې په څرګند ډول کښېني. د تشبيه په بنسټ کلام انځوريز کېږي او د کلمو حقيقي معناوې يو په بل کې سره واخښل شي او يو بل مفهوم ترې راووځي.

د بېلګې په ډول دلته يو څو بېته راوړو چې د تشبيه ارزښت موږ ته لا ښه په ګوته کړي.

شاعر غواړي چې د خپلې مينې جذبه او احساس موږ ته را وښيي که هر څو ووايي چې زما مينه پاکه ده ، پخپله مينه کې ډېر سوی يم ، ډېرې ستونزې مې ورکې ګاللي او يا يې ګالم. دې ته ورته که هر څومره جملې يې راوړې وي خپل مطلب مخاطب ته په سمه توګه نه شي رسولی. مګر خوشحال خان خټک دا کار په يوې تلميحي تشبيه سره څومره په ساده والي بيان کړی، چې که څوک وغواړي په تفسير کې يې پوره کتاب ليکلی شي.

کار زما او د مجنون سره يو رنګ دی
لکه دوه لرګي په اور کې سر په سر شي.

(٣٤م ٣٨١)

کله شاعر غواړي چې نامحسوس څیز محسوس کړي ، د دې لپاره اکثره مشبه عقلي او مشبه به حسي راوړي او په دې ډول یې زموږ ذهن و مني، (فکر) یو عقلي څیز دی چې موږ یې انځور نشو لیدلای، شاعر د خپل فکر د محسوس کېدو حالت له سیمابو سره تشبېه کوي ،چې زموږ په ذهن کې د حسي څیز په بڼه انځورېږي.

د سړي فـــکر پـــه مثل د سیماب دی
اضطراب یې هرهر خوا ارمان ارمان وي
(٣٤م ٤٠٦)

د تشبېه بل ارزښت د کلام ایجاز دی ، په تشبېه سره یو لوی مطلب په دوو جملو یا یو بیت کې راټولېږي.

تــــر یـــانـه دې د ختا آهو خجل شي
چې په شین شین یون کړې ښېوه ګرې
(٣٤م ٤٧١)

دې او دې ته ورته نورې خبرې دي چې د تشبېه ارزښت ترې جوتېدلای شي.

تشبېه په ورځنیو خبرو کې:

ژبه د ټولنې مال دی او د یوې ټولنې وګړي یې د یو بل د پوهولو راپوهولو لپاره په کار وړي. دهر یوه علم یا هنر بنسټ په ژبه پورې تړلی دی او هر ژبنی هنر هغه وخت ډېر په زړه پورې شي ،چې ځرکونه یې په ژبه کې پاخه وي ، ژبه نثر وي که نظم په دواړو کې د تشبېه راوړل یوه طبیعي خبره ده. هغه وګړي چې شاعران نه دي هم پخپلو خبرو کې تشبېه راوړي. ډېری شاعران بې سواده دي او د تشبېه په اړه هېڅ علمي معلومات نلري ، خو بیا هم په خپلو نظمونو کې په زړه پورې طبیعي او ساده تشبېګانې راوړي ،چې تخییل او ترکیب یې هم ډېر ساده دی. اروانباد ملنګ جان وایي:

د عـــاشـــق زړه د معشوق د لاس منه ده
که یې بوی کړی که خوړلی یار ګرم نه دی

(١٩ م ٣٠١ )

ملنګ جان د عاشق زړه له منې سره تشبیه کړی، وجه شبه یې بویول او خوړل ډېر عام فهمه دی.

په کور کلي کې عام وګړي که ښځې دي که نارینه په ورځنیو خبرو اترو کې په همدې ډول کلیوالي عام فهمه تشبیه ګانې راوړي. که کوم شاعر یې بیا په شعر کې راوړي، نو مخکې تر مخکې مبتذلې وي ، لکه د چا مخ ، حالت یا ژوند له ګل سره تشبیه کول، پخپله ګل شې عمر دې ګل مه شه ، فلانی د څراغ غوندې ده ، فلانۍ داسې توره ده لکه دړه ، د مرغاوی غوندې تګ کوي. غنم رنګې ده ، زړه مېړه ده، فلانی د سپي غوندې دی ، چې څو مره یې چغی کړی بېرته راځي، سترګې یې د ملخ غوندې دي ، خره غوندې یې ، غوا ، غویی به هم داسې کار ونکړي لکه تا چې وکړ، غوبارې غوندې راپسې شوې ، سپي غوندې مه غاپه ، د ماشوم غوندې خوی یې دی ، د چپ لاس جېب دی او داسې نور په سلګونو تشبیه ګانې دي چې هره ورځ تربنه په خبرو کې کار اخېستل کېږي.

یوه ورځ مې په کلي کې په یوه واده کې ګډون درلود. کله چې یې ډولۍ راوړه نو یو چا د ناوې له خسر څخه پوښتنه وکړه: (( ابا څنګه ده نږور دې ؟ )) هغه ځواب ورکړ: (( ښه ده د رانجو غونډاری دی )) زه د ځواب په هکله ډېر حیران شوم چې په دې یوه انځوریزه تشبیهي جمله کې یې د خپلې نږور ټول کره وړه په ډېر ظرافت سره بیان کړل.

سمندر د بدر شو لیکي: (( تشبیه او استعاره د انسان په خټه کې اخښل شوې ده. یو نالوستی عام سړی یا ښځه هم چې کور یا بهر خبرې کوي نو تشبیه استعاره یکې په خپله راځي. لکه د محلت یوه ښځه د زوی د وا ده په ډوډۍ د چا کره لاړه شي، نو د کور مېرمن ورته وو ایي: ( فلانۍ ! ستا دا هلک خو داسې دی لکه ګل ) نو دا تشبیه شوه. ) (٣ م ٣ )

عام وګړي تشبیه کاروي خو ډېره ساده او هغه چې دوی یې په خپل چاپیریال کې محسوسوي. هغه شاعران چې نالوستي دي دوی په دې کار کې له عام ولس سره مرسته کوي کېدای شي یوه تشبیه دوی رامنځته کړي او بیا عام وګړي تربنه پخپلو خبرو اترو کې کار واخلي.

کامل احمد نژاد لیکي: (( تشبیه نخستین و ساده ترین راه تفنن در بیان معنی است و در شعر ، نثر و حتی کلام عادی ازان استفاده می شود. )) (۱م۸۵)

د خوشحال خان خټک په غزلو کې د تشبیه ډولونه

۱ – تشبیه د تورو د راوړو او نه راوړو له مخې په دوو ډولو ده ، مرسله تشبیه او موکده تشبیه:

الف - مرسله تشبیه: دا هغه تشبیه ده، چې شاعر پر مشبه او مشبه به سره بېره د تشبیه توري ( ادات ) هم پکې راوړي وي:

تر جمال دې ډېر پتنګ غوندې ځارېږي
ســـتا د حــــسن کمی نشته ځاروه یې
(۳٤ م ٤٥۹ )

په پورته بیت کې (غایب کسان ) مشبه ، ( پتنګ ) مشبه به او (غوندې ) یې د تشبیه توری دی.

د ازل حکم په مثل دهاتي دی
د سړي فکر مثال پړی د ډیلې
(۳٤ م ٤٨۲ )

په لومړۍ مسره کې د ازل حکم ( مشبه ) ، هاتي (مشبه به ) او (مثل) یې د تشبیه توری دی ، همدا رنګه په دویمه مسره کې د سړي فکر (مشبه) ، د ډیلې پړی ( مشبه به ) او ( مثال ) د تشبیه توری دی.

آه کــــه یو ځله مې یار راشي په دست کې
لکه لوی ماهي د خوار صیاد په شست کې
(۳٤ م٤٥٨ )

لومړۍ مسره مشبه دویمه مسره مشبه به او (لکه ) یې د تشبیه توری دی.

د بنو څو کې یې نیغې ځي تر زړونو
چـــې تــېره تېره کاته کا لکه بازې

(۳٤ م ٤٤٨)

معشوقې (مشبه ) ، بازې (مشبه به ) او (لکه ) د تشبيه توری دی.

ب- موکده تشبيه: دا هغه تشبيه ده چې يوازې مشبه او مشبه به پکې راغلي وي. او د تشبيه توري (اد ات) پکې نه وي راوړل شوي. نوموړې تشبيه په درې ډوله ده: اضافي موکده تشبيه ، توصيفي موکده تشبيه او موکده محض تشبيه

I - اضافي موکده تشبيه: دا هغه ډول تشبيه ده، چې د يو شي اضافت پکې مشبه ته شوی وي او يا د مشبه او مشبه تر منځ يو اضا في ترکيب موجود وي. ، اضافي موکده تشبيه د اضافت له مخې په درې ډوله ده:

- **تشبيهي اضافت**: دا هغه ډول تشبيه ده چې مشبه او مشبه به پکې يو بل ته د اضافت په بڼه راغلي وي. يعنې مشبه مضاف اليه او مشبه به مضاف واقع شوی وي او کله کېدای شي مشبه مضاف او مشبه به مضاف اليه واقع شي. (۲۸ م ٤٥)

لکه: د زلفو مار يا د شونډو شراب:

چې د زلفو زنځيرونه ښکار وې
کـوم د مينې لېونی هوښيار وې
(۳٤ م ٤٨٩)

د پورته بيت په لومړۍ مسره کې زلفې (مشبه) ، زنځيرونه (مشبه به) او (د) د اضـافت لپـار راغلـی دی. د اضـافي ترکيـب لـه مخـې زلفـې (مـضاف اليـه ) او زنځيرونه (مضاف) دي ، نو په دې بنسټ ورته تشبيهي اضافت وايو.

خوله دې غونچه ګل ده تورګيسو د سنبل پاڼې
پښې دې دي د زرکې سپينه غاړه دې د زاڼې
(۳٤ م ٤٧٤)

په پورته بيت کې څلور تشبيه ګانې راغلي دي. لومړی يې خوله له غونچه ګل سره تشبيه کړې، چې توصيفي موکده تشبيه ده ، تورګيسو مشبه او د سنبل پاڼې مشبه به ، پښې مشبه او د زرکې پښې مشبه به او سپينه غاړه مشبه او د زاڼې غاړه مشبه به ده.

په ورستيو دريو واړو تشبېه ګانو کې اضافي موکده تشبېه راغلې، چې (مشبه) په درېواړو کې مضاف او (مشبه به) مضاف اليه دی او اضافت يې تشبيهي دی.

- **تلميحي اضافت:** د اضافي موکدې تشبېه له هغه ډول څخه دی، چې په وجه شبه پوهېدل يې په يوه داستان، کيسې يا پېښې پورې تړلي وي. (۲۸ م ٤٦)

که رســـتم د زمانې شې ګومان مه کړه
زمانه به دې پرې نږدي په خپل زور کې
(۳۴ م ٤٧٦)

مخاطب مشبه او رستم مشبه به، وجه شبه يې زور او طاقت دی، چې د رستم له کيسې څخه يې څرک لګېدای شي.

چـــابه هو مره دعشق ګنج راعنايت کړ
که مې نه وای خپله بخره په تقدير کې
(۳٤ م ٤٨٩)

عشق مشبه او ګنج مشبه به وجه شبه ارزښت دی، دلته د وجه شبه څرګندول په هغې ورځې پورې ځانګړې شول چې الله (ج) ټول روحونه مخاطب کړي و او د بندګۍ اقرار يې ترې واخيست، همدارنګه په هغه وخت ټولو روحونو ته د هغوی برخې ورووېشل شوې يعنې د عشق ورکړه د الله (ج) ورکړه ده او بل څوک پکې د خيل نه دی.

- **سمبوليکي اضافت:** دا هم د اضافي موکدې تشبېه يو ډول دی، دا هغه وخت پېښېږي چې مشبه به (مضاف) د مشبه (مضاف اليه) سمبول يا نښانه وي، لکه (د صبر ايوب) چې ايوب (ع) پخپله د صبر سمبول دی. ځينې سمبوليکي اضافت په بنسټيز ډول تلميحي اضافت دی، لکه د (حسن يوسف) چې لومړی يوسف(ع) د (حسن) څرګند وی دی. يعنې (سمبوليکي اضافت) او بيا تلميحي اضافت دی چې په يو داستان پورې تړلی دی. (۲۸ م ٤٦)

که هر څو ښايسته يې نه يوسف يې د کنعان
که هـــر څو هوښيار يې نه مخی يې د لقمان
(۳٤ م ١٦٣)

د پورته بیت په لومړي نیم بیتي کې مخاطب له یوسف (ع) سره په ښکلا کې تشبیه شوی دی او په دویم نیم بیتي کې مخاطب په پوهه کې له لقمان سره تشبیه شوی دی ، چې دواړه یو د ښکلا او بل د پوهې سمبولونه دي.

چـــــې جـــمال و تـــه دې ګورم حیرانیږم
خدای په ما باندې یوسف د زمانې کړې
(۳٤م ٤٤۳)

یوسف (ع) د حسن سمبول دی چې دلته مشبه به واقع شوی دی او مخاطب مشبه دی.

II - توصیفي موکده تشبیه: هغه موکده تشبیه ده، چې مشبه پکې موصوف او مشبه به پکې صفت واقع شوی وي، یا هغه تشبیه ده چې مشبه او مشبه په خپلو کې توصیفي ترکیب جوړ کړي ، لکه: ګلاندام یا ګلرخ:

غتې سترګې لوی بانه پراخې وروځې
شـــــکر لـبې ګل رخسارې مه جبینې
(۳٤م ٤٥٥)

په دویمه مسره کې (لب ، رخسار او جبین ) مشبه راغلي دي، چې درې واړه موصوف دي او (شکر ، ګل ، مه ) مشبه به دي چې درې واړه د صفت دنده تر سره کوي.

ډېرې دي نګارې ښایسته پري رخسارې
نـــورو لره نور څه ته زما زړه په تنها وړه
(۳٤م ۲۹۹)

د نګارو رخسار (مشبه) او پري ( مشبه به) دی ، د نګارو مخونه موصوف او پري صفت راغلی ، چې دواړه یو توصیفي ترکیب جوړوي .

له ښایست سره سل نورې چارې بویه
چې عاشق په ځان مین کاندي مهرویه
(۳٤م ۲۸۲)

په پورته بیت کې روی (مشبه ) او ( مه ) مشبه به دی چې د صفت په بڼه له روی یعنې مخ سره راغلی دی.

پــه هـــره کـــوڅه ګرځم که مې چا لیده رنګینه
ګل مخه ، غنبر بویه ، هوسۍ چشمه ، مه جبینه
(٣٤ م ٢٤٢)

د محبوب (مخ ، بوی ، سترګې او جبین ) مشبه او (ګل ، عنبر ، هوسۍ او مه ) مشبه به واقع شوي ،چې څلور لومړۍ کلمې موصوف او ورپسې څلور کلمې د صفت بڼه لري.

III - موکده محض تشبیه: محض په لغت کې سوچه یا ناګډوله ته وايي، هغه موکده تشبیه ده چې مشبه او مشبه به یکې نه توصیفي او نه اضافي ترکیب ولري.

توري سترګې یې تور باز بانه یې نوکې
چـــې زمـــا خاطر یې یو وړ په نوکارو
(٣٤ م ١٦٧)

توري سترګې (مشبه ) او تور باز یې ( مشبه به ) همدا رنګه بانه ( مشبه ) او نوکونه (مشبه به ) دی چې هېڅ ډول اضافي او توصیفي ترکیب نلري.

دواړه سترګې یې شاهین شهپر یې زلفې
زمـــا زړه کـــوتـر شاهین را څخه یو وړ
(٣٤ م ٧٧)

سترګې (مشبه ) شاهین ( مشبه به ) زلفې ( مشبه ) او شهپر یې ( مشبه به ) دی ، چې هېڅ ډول اضافي او توصیفي ترکیب نلري.

رقیـــبانـــو وتـــه نرم شي تر مومه
و خوشحال و ته زړه سنګ کا هغه یار
(٣٤ م ٦٥)

زړه ( مشبه ) او سنګ ( مشبه به ) دی چې هېڅ ډول اضافي او توصیفي ترکیب نلري.

٢-د وجه شبه د راوړو او نه راوړو له مخې: په دوو ډولو ده (مفصله او مجمله تشبیه)

الف-مفصله تشبیه: که چرته پر مشبه او مشبه به سربېره وجه شبه هم په کلام کې څرګنده راغلې وي. مفصله تشبیه یې بولي:

دا دنـــیا لکه لولیه ده خوشحاله
که یې ګورې ګاه د چا شي ګاه د چا

(٣٤ م ١١)

دنیا (مشبه) او لولی (مشبه به) ده، (کله یو ته او کله بل ته تلل یا په نصیب کېدل) یې وجه شبه ده، چې ځرګند ده په کلام کې راغلې ده.

خوار عاشق په خاصیت دی د سیماب

ځـــو ونـــه مري ځنې نه ځي اضطراب

(٣٤ م ٣٤)

عاشق (مشبه) سیماب (مشبه به) او (اضطراب نه تلل) یې وجه شبه ده چې په کلام کې ذکر ده.

یار مې په ښایست کې لکه ګل د نوبهار دی

سود یې د جمال کړم چې ګلزار لره وردرومم

(٣٤ م ١٣٧)

یار (مشبه)، ګل (مشبه به) او ښایست یې (وجه شبه) ده.

رنګ یې ترخوی ښه و خوی یې لا ښه و تر رنګه

ګـــــل و د ګـــــلابو شګفته شو نور په تله شو

(٣٤ م ١٨١)

غایب (مشبه)، د ګلابو ګل (مشبه به) او شګفته (غوړېدل) یې وجه شبه ده.

چې له شرعې یو قدم درومي بې رخه

و ګـــوشمال و ته تیار لکه رباب دی

(٣٤ م ١٩٠)

هغه څوک چې له شرعې مخالف ځي (مشبه) رباب (مشبه به)، ګوشمال یا غوږونه تاوول یې (وجه شبه) ده.

غوڅول یې هسې نه دي چې څه پرېږدي

تـــر الـــماس یـــې د غمزې توره وه تېزه

(٣٤ م ٢١٩)

غمزه (مشبه) توره (مشبه به) غوڅول یې (وجه شبه) ده.

چـــې بې سته مېلمه کېږي هغه زه یم

که اشنامې د هندو غوندې ست نه زده

(۳٤ م ۲۹۷ )

اشنا ( مشبه ) هندو ( مشبه به ) ، ست نه کول ( وجه شبه ) ده.

لکه نوم چې د کیمیا د عنقا اورې

تـــــر دا دوا ړونه نا یابه لا وفا وه

(۳٤ م ۳۸۸ )

وفا ( مشبه ) ، کیمیا او عنقا ( مشبه به ) او ( نایابه ) یې وجه شبه ده.

د منصور غوندې به غل د خاص و عام شم

که ښکاره مـــې و عالم ته ګوی مګوی شي

(۳٤ م ٤۱۷ )

متکلم ( مشبه ) منصور ( مشبه به ) او د خاصو او عامو په نظر کې غل کېدل یې ( وجه شبه ) ده.

د تېرا او به دې وڅښې خوی دې نور شو

اپـــــریدي غوندې خبرې د اولجو کړې

(۳٤ م ٤٤۰ )

مخاطب ( مشبه ) اپریدی ( مشبه به ) او د اولجو خبرې یې( وجه شبه ) ده.

ب- **مجمله تشبیه:** هغه تشبیه ده، چې (وجه شبه ) یې په کلام کې په څرګند ډول نه وي راوړل شوې.لوستونکی یې پخپله د خپل فکر په رڼا کې را پیدا کوي چې مجمله تشبیه بیا د وجه شبه ذهن ته د رسېدو له مخې په دوه ډوله ده:

- **قریبه (نژدې ) مجمله تشبیه:** چې د مشبه او مشبه به تر منځ وجه شبه ذهن ته ډېره نژدې وي او څه خاص سوچ او فکر ته اړه ونه لري.

زړه پخـــپله هغه مخ لره ولاړ نه شو

د زلفینو یې هر تار ورته زنځیر دی

(۳٤ م ۷٦ )

د زلفو تار (مشبه ) ، زنځیر ( مشبه به ) او (تړل) یې وجه شبه ده، چې بې له سوچه ذهن ته لېږدي.

د ګـــلو نو په لیده دې مخ را یاد شي

ځکه هسې په ګلګشت د چمن تل یم
(٣٤ م ١٢٧ )

مخ (مشبه ) ګلونه ( مشبه به ) او ښکلا يې ( وجه مشبه ) ده. چې بې لـه ځنډه ذهن ورته رسېږي.

د مخ مشال دې بل کړ د پتنګ غوندې پرې راغلم
بـــيا ته به راته وايې چې په عشق کې صادق نه يم
(٣٤ م ١٣١ )

مخ (مـشبه ) مـشال ( مـشبه بـه ) او ځلېـدل ( وجـه شـبه ) ، همدارنګـه مـتکلم (مشبه ) پتنګ ( مشبه به ) او سوزېدل او له منځه تلل يې ( وجه شبه ) ، چې ډېره زر ذهن ته راځي.

- **بعيده ( لرې ) مجمله تشبيه :** هغه تشبيه ده ، چې وجه شبه يې تر ډېر غـور او فکر ورو سته ذهن ته راشي.

نفساني تاريکه شپه صادق هغه دی
چـــې سحر غوندې سينه لري صادقه
(٣٤ م ٩٩)

نفساني ( مشبه ) تاريکـه شـپه ( مـشبه بـه ) د سمې لارې نـه ښـکاره کېـدل يـې ( وجه شبه ) ده ، صادق يا هغه څوک چې نفساني نه دی ، سينه يې ( مـشبه ) سـحر ( مشبه به ) سمه لار ښکاره کېدل يې ( وجه شبه ) ده. چې پـه ډېـر غـور او سـوچ ذهـن پرې رسېږي.

مخ دې مسلمان دی تورې زلفې دې کافرې
دواړه مـــې قـــــبله دې مسلمان يم که کافر
(٣٤ م ٦٠ )

مخ ( مشبه ) مسلمان ( مشبه به ) وجه شبه يې (رينبتينولي او رونوالی ) دی. تورې زلفې ( مشبه ) کافر ( مشبه به ) وجه شبه يې ( تياره او تو رالـی ) دی، چې زر ذهن پرې نه رسېږي.

هر تشنه چې د وحدت په سيند سېراب شو
نـــــور هـــــــمه جـــــهان ورده وته سراب شو
(٣٤ م ١٨٩)

وحدت (مشبه) سيند (مشبه) فيض رسېدل يې (وجه شبه)، جهان (مشبه) سراب (مشبه به) فيض نه رسېدل يې (وجه شبه) چې غور غواړي.

هــغه واره مــهيادي په هجران کې
چې واعظ و ماته شرحه د دوزخ کړه
(٣٤ م ٣٦٥)

هجران (مشبه)، دوزخ (مشبه به) سختي او تکليف يې (وجه شبه) ده، چې غور او سوچ غواړي.

ج - تمثيلي تشبيه: هغه تشبيه ده، چې مشبه به يې د يو ترکيب له مخې د مثل يا حکايت بڼه ولري. په دې ډول تشبيه کې مشبه اکثره معقول او مرکب وي، چې دده د اثبات لپاره مشبه به مرکب او محسوس راوړل کېږي.

د بيان په ځينو کتابونو کې هغه تشبيه، چې وجه شبه يې مرکبه راغلې وي تمثيلي تشبيه ګڼي. (٢٨ م ٤٤)

سيد احمد هاشمي ليکي: (( تمثيلي تشبيه تر نورو تشبيه ګانو خورا بليغه ده، په دې تشبيه کې ژور فکر او کتنې ته اړتيا ده. نوموړې تشبيه په معانيوو کې ډېره ارزښتمنه او پر نفسونو موثره تمامېږي. نوموړې تشبيه د ذهن په سترګيا لاسته راځي، ځکه چې وجه شبه يې له ګڼو شيانو څخه که حسي وي يا غير حسي لاسته راوړل کېږي... )) (٩ م ٢٧٥)

نوموړې دا تشبيه په دوو ډولو وېشي.

١ - هغه چې د تشبيه توري پکې ښکاره راغلي وي: بېلګه يې د قران کريم لاندې ايت شريف راوړي: مَثل الذِيْنَ حُمِلُوا التَوْراةَ ثُم لَمْ يَحْمِلو هَا كَمَثَلِ الحِمارِ يَحْمِلْ اسفَارًالايه. (٢ م م ٢٧٥ او ٢٧٦)

ژباړه: (( کوم کسان چې د تورات حامل ګرځول شوي وو خو هغوی د هغه پېټی پورته نه کړ ، د هغو مثال د هغه خره په شان دی، چې پر هغه باندې کتابونه بار کړای شوي وي. )) (۱۸ م ٥٥٤)

په پورته ایت شریف کې مشبه ( الذین حملو التوراة لم یحملو ها ) دی یعنې هغه کسان چې د تورات علم ورکړل شوی و او عمل یې پرې ونه کړ ، همدرانګه مشبه به پکې ( الحمار ) دی چې ګڼور کتابونه پرې بار وي خو ګټه ترې نشي اخستی. ).

د تشبیه توری پکې (کمثل) دی. وجه شبه ( بې ګټې زحمت او بار وړل ) دي.

لکه سیوری وړاندې وروستو راسره ځي
چې و هر لوري ته ځم سبا بېګاه
(۳٤ م ۲٦۱ )

مخاطب ( مشبه ) او د سوري غوندې وړاندې وروسته تګ ( مشبه به ) دی، (لکه) یې د تشبیه توری دی چې تمثیلي بڼه لري.

په هجران کې هغه هسې شان و صال شته
لکه څوک له خپله یاره لاس تر غاړه
(۳٤ م ۲۹۱ )

لومړی مسره ( مشبه ) او دویمه مسره ( مشبه به ) او (لکه) یې تشبیه توری دی، چې تمثیلي بڼه لري.

چې یې ونیسم په غېږ کې راته ګوري
لکه مست د مور په پیو کم کبلی
(۳٤ م ۳۳۲ )

د غایب شخص په غیږ کې نیول او د هغې کتل (مشبه) او د هوسۍ بچی (مشبه به ) او (لکه) یې د تشبیه توری دی.

۲ – هغه تمثیلي تشبیه چې د تشبیه توري پکې نه وي راغلي:

دنـــیا وته چې ګورم کارو بار ته د وګړي
د وړکیو تماشې دي زه یې هم ورسره کړم
(۳٤ م ۱۲۹)

لومړی مسره ( مشبه ) او دویمه مسره ( مشبه به ) ده، چې په تمثیلي بڼه راغلې دي.

کښلي دي که ګورې چې مخ پټ کله څرګند کا
ګـــل د بـــــهار نه دی چې را زېږي له زمینه
(۳٤ م ۲۵۰)

د بهار ګلونه راټول کېدل (مشبه) واقع شوی دی، چې د کښلو د مخ پټولو او څرګندولو سره (تشبیه) شوی او تمثیلي بڼه لري.

نــــا سوتي عالم پسو په دنیا ښخ دی
هلک تل د مور په تي پورې وي نښتی
(۳٤ م ۳٤۰)

لومړی مسره (مشبه) او دویمه مسره (مشبه به) ده ، په یو څیز پسې نښتل او شله کېدل یې (وجه شبه) ده. دهلک د مور په تي پورې نښتل او نه پرېښودل تمثیلي بڼه لري.

ستغ لري هم خوړ لري د غره غوندې سینه مې
تـــــل بـــاندې د اوښکو کاروانونه دي چلېږي
(۳٤ م ٤۱۳)

سینه (مشبه) او غر (مشبه به) ، لوړې ژورې یې وجه شبه ده. اوښکې (مشبه) کاروانونه (مشبه به) ،حرکت یې (وجه شبه) ده ، دلته کاروانونه تلل تمثیلي بڼه لري.

ته په پالنګ پرېوځې زه حیران په فکر لاړ شم
پـــنډ دی د ګلونـــــو کـــه دانه پټه په پاڼې

(٣٤ م ٤٧٤)

د مخاطب په پالنګ پرېوتل (مشبه) د ګلونو پنډ یا د دانې په پاڼو پټېدل (مشبه به) دی ، د مخاطب په پالنګ پرېوتل تمثيلي بڼه لري.

د - ناتمثيلي تشبيه: هغه تشبيه ده چې هېڅ ډول تمثيل پکې راوړل شوی نه وي او په عادي بڼه وي:

ته په دا حسن جمال چې درته ګورم
نـــه پوهېږم ښاپيرى يې که سړی
(٣٤ م ٤٩٠)

مخاطب (مشبه) ، ښاپيرۍ (مشبه به) او ښکلا يې (وجه شبه) ده، چې هېڅ ډول تمثيل پکې نشته.

کښلی مخ دې د څراغ غوندې ښکاره کړ
عـــــاشـــقان لکه پتنګ ترې ځار وې
(٣٤ م ٤٨٩)

مخ (مشبه) ، څراغ (مشبه به) عاشقان (مشبه) پتنګ (مشبه به) چې هېڅ ډول تمثيل پکې نشته.

شونډې ستا لکه نبات هسې خوږې دي
تـــــريخ ويل ځنې نه ښايي لب شکرې
(٣٤ م ٤٣٧)

شونډې (مشبه) ، نبات (مشبه به) او خوږوالی يې (وجه شبه) ده. لب (مشبه) شکر (مشبه به) او خوږوالی يې (وجه شبه) ده.

که دې غاښ و شونډې ګورم در مرجان وي
کـــــه دې مخ و ته نظر کړم مه رخسارې
(٣٤ م ٤٣٣)

غابښ (مشبه) ، در (مشبه به) ، ګردوالی او سپینوالی یې (وجه شبه) ده. شونډې (مشبه) مرجان (مشبه به) او سوروالی یې (وجه شبه) ده. رخسار (مشبه) مه (مشبه به) او ښکلا یې (وجه شبه) ده.

۳ - د مشبه او مشبه به د موقعیت له مخې:

د مشبه او مشبه به د موقعیت له مخې تشبیه په دوو ډولو ده: ملفوفه تشبیه او مفروقه تشبیه.

الف - ملفوفه: هغې تشبیه ته وایي چې په یوه مسره یا بیت کې شاعر لومړی څو (کم نه کم دوه) مشبه راوړي او بیا د هر یو مشبه لپاره په بېل بیت یا مسره کې مشبه به راوړل شي. کله مشبه به مخکې راوړل شي او بیا ورپسې مشبه راړل کېږي ، دواړه ډوله په اشعارو کې شته. د سیروس شمیسا په نظر: ((دا ډول تشبیه د لف و نشر په ادبي صنعت بنا ده. )) (۲۸ م ٤۷)

مرتبه ملفوفه تشبیه:

که په یوه ملفوفه تشبیه کې مشبه او مشبه به په ترتیب راغلي وي یعنې کوم مشبه چې لومړی راغلی مشبه به یې هم لومړی راغلی وي ، همداسې تر پایه ، دې ډول ته مرتبه ملفوفه تشبیه وایي، لکه:

لـــکه زړه زما ستا شونډې
نه کباب شته نه شراب شته
(۳٤م ۲۹٤)

زړه او شونډې مشبه دي ، د زړه لپاره کباب او د شونډو لپاره شراب په ترتیب سره مشبه به راغلي دي.

د دانـــا د کاناکار څه نور څه نه دی
حکایت د شنه توتي او د غراب دی
(۳٤ م ۳٥٤)

دانا او کانا مشبه دي ، د دانا لپاره توتي او د کانا لپاره غراب مشبه به واقع شوي دي ، چې ترتیب یې برابر دی.

ما څه شونډې غابښ د هغه یار نه دي ستایلي

راشـــه که یې ګورې لعل و در مې دي پېيلي
(٣٤ م ٤١٤)

شـونډې او غـاښ مـشبه دي ، د شـونډو لپـاره (لعـل) او د غاښـو لپـاره (در) مشبه به راغلي دي ، چې ترتيب يې برابر دی.

ستا تر شونډو تر غاښونو به يې زار کړم
کــــه ياقوت دي که سره لال که ملغلرې
(٣٤ م ٣٤٣)

شونډې او غاښونه مشبه دي ، د شونډو لپاره (ياقوت) او سره لال همدارنګه د غاښو لپاره (ملغلرې) د مشبه به په ډول په ترتيب راغلي دي.

تورو زلفو ته يې ګوره ښايسته دواړه رخسارې
د جهان په مخ به نه وي سنبل هسې سمن هسې
(٣٤ م ٤٨٦)

تورې زلفې او رخسارونه (مشبه ) دي ، د تورو زلفولپاره سنبل او د رخسار لپاره سمن په ترتيب سره د (مشبه به) په توګه راغلي دي.

نا مرتبه ملفوفه تشبيه:

که چېرته مشبه او مشبه به په ترتيب کې سره اونښتي وي يعنې که په يو بيت کې لومړی دوه يا څو مشبه راغلي وي لکه: مخ او شونډې د شونډو لپاره لعل او د مخ لپاره سپوږمۍ راوړل شوي وي خو په ترتيب نه وي بلکې مخ لومړی ذکر دی او شونډې دويم ، دلته د شونډو لپاره مشبه به مخکې راوړل شوی وي او د مخ لپاره مشبه به دويم راوړل شوي وي ، چې ترتيب يې سره اونښتې وي يا نامرتب وي.

تا ويل خوشحاله چوپ شه خوله مې واخله
زه تـــوتي يــــم چيغار وکړم بيا شکر خورم
(٣٤ م ١٤٠)

په پورته بيت کې خوله ( مشبه ) او شکر (مشبه به ) واقع شوي دي همدارنګه متکلم (مشبه ) او توتي ( مشبه به ) دی.

د کنـــجکو قدریو د دروبل دی
ننګیالیو سره څه رڼدې بې ننګان
(٣٤ م ١٥٤)

ننګیالي او بې ننګان (مشبه ) واقع شوی دي ، د ننګیالیو لپاره (در ) اود بې ننګو لپاره (کنجکې ) مشبه به دي ، چې په ترتیب سره اوښتي دي.

رقیبان دې غوغا کا پروا مې نشي
شېر به کومه اندېښنه کا له روباهه
(٣٤م ٢٦٦)

رقیبان او متکلم مشبه دي ، شېر د متکلم او روباه د رقیب لپاره مشبه به راغلي دي ، چې په ترتیب کې سره اوښتي دي.

ب - مفروقه تشبېه: که شاعر په یو بیت کې څو مشبه ذکر کړي او د هر مشبه تر څنګ یې مشبه به راوړي ، چې د هرې جوړې توپیر سره څرګند شوی وی، مفروقه تشبېه یې بولي.

رنګ یې د ســــړي و امـــا خوی د ښاپېریو
تن یې لکه ســیم و په زړه سخته سنګ خارا
دنګه تـــــازه کنـــګه قـد عرعره موکمره
ښــــــه یـــې تـــر ګلابو د ګلابو عذارا
غاښ یې درګوهر په لب شکر ابـرو کــمانه
تور باڼه ناوک په دواړو سترګو خــــونخوارا
پوزه یې غونچه وه د زنبق سېب سپینه زنه یې
مــــــشک د مخ خالونه په مخ کښلې مه پارا
(٣٤ م ٧)

غایب (مشبه ) ښاپېری (مشبه به ) ، تن (مشبه ) سیم (مشبه به ) ، زړه (مشبه ) سنګ خارا (مشبه به ) ، قد (مشبه ) عرعر (مشبه به ) ، کمر (مشبه ) مو (مشبه به ) ، عذارا (مشبه ) ګلاب (مشبه به ) غاښ (مشبه ) درګوهر (مشبه به ) ، لب (مشبه ) شکر (مشبه به ) ، ابرو (مشبه ) کمان (مشبه به ) ،باڼه (مشبه ) ناوک (مشبه به ) ، پوزه (مشبه ) د زنبق د ګلانو غونچه (مشبه به ) ،سپینه زنه (مشبه ) سېب (مشبه به ) ،

د مخ خالونه ( مشبه ) مشک ( مشبه به ) ، مخ ( مشبه ) او مه ( مشبه به ) واقع شوي دي، چې د ټولو توپیر یو له بله کېږي.

کانې لعل د بدخشان ګیاه کیمیا ده
چــــــې یې نه پېژني ته ګناه د چا
(٣٤ م ١٠ )

د وطن کانې ( مشبه ) د بدخشان لعل ( مشبه به ) ، ګیاه ( مشبه ) او کیمیا ( مشبه به ) دی.

ظاهـــــــر لکه شهباز یم که وما وته نظر کړې
با طن لکه خورشید یم هېڅ مې مه غواړه قیاس
(٣٤ م ٨٧ )

متکلم ( مشبه ) شهباز ( مشبه به ) ، متکلم ( مشبه ) خورشید ( مشبه به ) دی.

که ته لکه لیلا یې ما مجنون بوله په عشق کې
کــــه ته لکه عذارا یې زه هم کم تر وامق نه یم
(٣٤ م ١٣١ )

مخاطب ( مشبه ) لیلا او عذرا ( مشبه به ) ، متکلم ( مشبه ) مجنون او وامق ( مشبه به ) دي.

شونډې دې یا قوت دي غاښ دې در د زړونو قوت دی
درســـــــته دې د اتــــــنګه خــــوله حقه د جواهرو
(٣٤ م ٢١٣ )

شونډې ( مشبه ) یاقوت ( مشبه به ) ، غاښ ( مشبه ) در ( مشبه به ) ، تنګه خوله ( مشبه ) د جواهرو حقه ( مشبه به ) ده.

تورې وروځې یې لینده بانه یې غشي
غــــاښ یې در قیمت بها په لب شکره
(٣٤ م ٢١٦ )

تورې وروځې ( مشبه ) لینده ( مشبه به ) بانه ( مشبه ) غشي ( مشبه به ) غاښ ( مشبه ) قیمتي در ( مشبه به ) ، لب ( مشبه ) او شکرې ( مشبه به ) راغلي دي.

په خوله غونچه دها نه په غاښونو دردندانه
په دواړو خــوږو شونډو تر شکرو لا شیرینه

(٣٤ م ٢٤٢ )

(خوله )مشبه غونچه ( مشبه به ) ، غاښونه ( مشبه ) ، در ( مشبه به ) ، شونډې ( مشبه ) او شکر ( مشبه به ) دی.

کله سول کله ژوندون بخښل ومــاته
د عشق اوره په ما چارې د ققنس کړه

(٣٤ م ٢٦٨ )

عشق ( مشبه ) اور ( مشبه به) ، متکلم ( مشبه ) ققنس ( مشبه به ) دی.

عادلان مې د جنت د ګــلزار ګل دي
ستمګر مې د دوزخ د اور لرګي دي

(٣٤ م ٣٢٧ )

عادلان ( مشبه ) د جنت د ګلزار ګل ( مشبه به ) ستمګر ( مشبه ) د دوزخ د اور لرګي ( مشبه به ) دي.

زړه مې ګل د نیلوفر مخ یې افتاب دی
نــــیلوفـــــر مې و افتاب وته کږېږي.

(٣٤ م ٤١٦ )

(زړه ) ( مشبه ) د نیلوفر ګل ( مشبه به ) مخ یې ( مشبه او افتاب ( مشبه به ) دی.

تورې سترګې دې شهلا نرګس د باغ دي
تـــــورې زلفې دې سنبل دي مخ نسرین

(٣٤ م ٤٥٦ )

تورې سترګې ( مشبه ) شهلا نرګس ( مشبه به ) تورې زلفې ( مشبه ) سنبل ( مشبه به ) ، مخ ( مشبه ) او نسرین ( مشبه به ) دي.

ستا نظر لکه تور باز زړه مې تارو دی
په تور باز د تور تارو غوښې روا شوې

(٣٤ م ٤٥٦ )

ستا نظر ( مشبه ) تور باز ( مشبه به ) زړه (مشبه ) او تارو ( مشبه به ) دي.

٤-د غرض له مخې: د غرض له مخې تشبيه په دوو ډولو ده ، عادي تشبيه او غير عادي تشبيه:

الف - عادي تشبيه: دا هغه تشبيه ده ،چې ( مشبه به ) تر ( مشبه ) ځواکمن وي او معکوسه معنی هم ترې نه مراد پرې.

ستا خوږې شونډې نبات دي رقيب مچ دی
بنـــــــه خـــو دا چې يې له شونډو وشړې
(٣٤ م ٤٧١ )

خوږې شونډې ( مشبه ) او نبات ( مشبه به ) دی ، وجه شبه د دواړو ترمنځ خوږوالی دی شونډې په خوږوالي کې له نباتو سره تشبيه شوي ،چې مشبه به تر مشبه په صفت کې ځواکمن دی ، رقيب ( مشبه ) او مچ ( مشبه به ) ، خوږو ته تګ او نه جدا کېدل يې ( وجه شبه ) ده ،چې دلته هم مشبه به تر مشبه د وجه شبه له مخې ځواکمن دی.

چې ژوندي وي غم دې نه کاندي د لوږې
شـــــــنه تـــوتي سره شکرې نه دي لږې
(٣٤ م ٤٤٩)

هغه کسان چې ژوندي دي ( مشبه ) ، توتي ( مشبه به ) د رزق رسېدل دواړو ته ( وجه شبه ) ده ، چې دلته هم د وجه شبه له مخې مشبه به غوره او قوي دی.

ما وې چرته به وي کان د خوږو قندو
شاه و لـــب ته اشاره کړه دلې دلـــې
(٣٤ م ٤٥٢ )

د شاه لب ( مشبه ) د خوږو قندو کان ( مشبه به ) چې د وجه شبه له مخې مشبه به قوي دی.

ب - غیرعادي تشبیه: دا هغه تشبیه ده، چې ( مشبه ) تر ( مشبه به ) قوي واقع شوی وي او یا یې له وجه شبه څخه معکوسه معنی واخیستل شي. په دوو ډولو ده:

- **تفضیلي تشبیه:** که چرته ( مشبه ) تر ( مشبه به ) ځواکمن راوړل شوی وي یعنې مشبه تر مشبه به غوره ګڼل شوی وي ، دې ډول تشبیه ته د غرض له مخې غیرعادي تشبیه وایي.

ښه د سروې ونه، نه چې ښه ده ستا تر قده
شهد که شیرن دي ، نه شیرن دي تر ګفتار ستا
ښې د هوسۍ سترګې ، نه چې ښې دي ستا تر سترګو
ښه د زرکو یون دی ، نه چې ښه دی تر رفتار ستا
(۳٤ م ۳۰)

د مخاطب قد ( مشبه ) سروه ( مشبه به ) لوړوالی یې ( وجه شبه ) ، ګفتار ( مشبه ) شهد ( مشبه به ) خوږوالی یې ( وجه شبه ) ،دمخاطب سترګې ( مشبه ) د هوسۍ سترګې ( مشبه به ) غټوالی او توروالی یې ( وجه شبه ) ، د مخاطب رفتار ( مشبه ) د زرکو یون ( مشبه به ) وجه شبه یې ( په ناز ناز تلل ) چې په څلور واړو تشبیه ګانو کې دوجه شبه له مخې مشبه تر مشبه به قوي راغلی دی.

په سرو شونډو دې بازار د شکر مات کړ
تورو زلفو دې ناموس د عنبر مات کړ
(۳٤ م ۷۲)

سرې شونډې ( مشبه ) شکر ( مشبه به ) خوږوالی یې ( وجه شبه ) ، همدارنګه تورې زلفې ( مشبه ) عنبر ( مشبه به ) وجه شبه یې ( خو شبویي ) ده ،چې په دریواړو تشبیه ګانو کې د وجه شبه له مخې مشبه تر مشبه به قوي دی.

د جمال خوبي دې زیاته تر افتابه
د نظر لپاره نوم در باندې ماه ږدم
(۳٤ م ۱۳٦)

د مخاطب جمال ( مشبه ) افتاب او مهتاب ( مشبه به ) وجه شبه یې ( نورانیوالای ) دی ،چې د وجه شبه له مخې مشبه تر مشبه به قوي دی.

كه يو ځله مخ څرګند كـــا له نقابه
د ښايست نامه به واخلي له افتابه
لاله ګل به يې له مـخه خوبې پور كا
په زلفينو به سنــبل كاندې بې تابه
(٣٤ م ١٩٣)

مـخ ( مـشبه ) افتـاب او لالـه ( مـشبه بـه ) (وجـه شـبه ) يـې ( نـوراني والـي ، سـوروالي او نـازكوالى ) دى ، زلفـې ( مـشبه ) سـنبل ( مـشبه بـه ) وجـه شـبه يـې ( خوشبويي ، توروالى ) دى، چې په ټولو كې مشبه تر مشبه به قوي دى.

نو بهار يې په راتللو شګفته شي
د لالـــــه تر ګلو ښه لري بارخونه
(٣٤ م ٢٤٩)

بارخو ( مشبه ) لاله ( مشبه به ) (ښكلا ) يې وجه شبه ده ، چې تر مشبه بـه پـه مشبه كې زور زيات دى.

خود به ستا تر مخه د ګياه غونډې څرګند شي
ګـــــل د لالـــــه راوړه خـپل رخسار لره كنه
(٣٤ م ٢٦٤)

رخسار ( مشبه ) ، دلاله ګل ( مشبه ) ښكلا يې( وجه شبه ) ده، چې تر مشبه به مشبه زورور او قوي دى.

لــــكه در هسې غاښونه
لا تر درو سپين هموار ښه
(٣٤ م ٢٦٤)

غـاښ ( مـشبه ) در ( مـشبه بـه ) وجـه شـبه يـې ( سـپينوالى او اواروالـى ) دى. مـشبه تـر مشبه به قوى واقع شوى دى.

كله سبر ونه هسې سمه ده په قد كې
چــا نامه د سبر ستا و قد ته اخستـه
(٣٤ م ٣٠٤)

قد (مشبه ) سبر ونه ( مشبه به ) لوړوالی يې ( وجه شبه ) ده ، دلته هم مشبه تر مشبه به د وجه شبه له مخې قوي دی.

چې د باغ سبر يې پستې تر قامت دي
پښتنې په قامت سترې نه دي څه دي ؟
(٣٤ م ٣٨٠ )

په دې بيت کې تشبيه هم کټ مټ د تېر بيت په څير ده.

تــه چې په ښه حسن جمال تېره تر ليلا يې
ځکه تر مجنون د خوشحال غږ دی د تيري
(٣٤ م ٤١٣ )

مخاطب ( مشبه ) ليلا ( مشبه به ) جمال يې ( وجه شبه ) ، مـتکلم ( مـشبه ) مجنون (مشبه به ) او ( پـه عـشق کـې تـر هر څـه تېريـدل ) يـې وجه شبه ده، چې پـه دواړو تشبيه ګانو کې د وجه شبه له مخې مشبه تر مشبه به قوي دی.

د ختاد ملک نافې واړه خجل شي
چې د تا زلفې ښکاره شي معتبرې
(٣٤ م ٤٣٧ )

د مخاطب زلفې ( مشبه ) د ختاد ملک نافې ( مشبه به ) خوشبويي يې ( وجه شبه ) ده، مشبه تر مشبه به قوي دی.

د سپرلي ګلونه څه دي چې يې ستا يم
تر ګلونو چــــې زيــــبا ده هغه ته يې

مخاطب ( مشبه ) د سپرلي ګلونه ( مشبه به ) ښـکلا يـې ( وجـه شـبه ) ، مـشبه تـر مشبه به قوي دی.

- مقلوبه يا معکوسه تشبيه: دا تشبيه په دوو ډولو ده:

I - د مشبه او مشبه به د موقعيت د تغيير په بڼه:

په دې ډول تشبيه کې لومړی مشبه او مشبه به وټاکل شي بيا په دويمه مسره کې مشبه د مشبه به پر ځای راوړل شي او همدا ډول مشبه به د مشبه ځای ته ولېږدول شي ، شرط به يې دا وي چې ( وجه شبه ) د دواړو ببله ببله وي:

محبت غلام باد شاه بادشاه غلام کا
خــــبر واخـله له ايازه له محموده
(۳٤ م ۲۰۷)

غلام ( مشبه ) بادشاه ( مشبه به ) وجه شبه (لوړه مرتبه) بيا همدا بادشاه ( مشبه ) او غلام ( مشبه به ) ( وجه شبه ) يې ( تا بعداري ) ده ، چې سره اوښتي او تبديل شوي دي.

د لــــوهړ ګلونه ښه دي تر نلګوسې
ولې بيا چېرې لوهړ چېرې نلګوسه ؟
(۳٤ م ۲۲۳)

لومړی د لوهړ ګلونه (مشبه ) نلګوسې ( مشبه به ) تشبيه تفضيلي ده ، بيا بېرته نلګوسي د ( مشبه ) پرځای او لوهړ ګلونه د ( مشبه به ) پر ځای راغلي دي. وجه شبه يې (ښکلا ) ده ، چې تفضيلي بڼه لري.

په توانګر باندې اطلس لکه شړۍ ده
پــــه نادار باندې شړيه ده وريښمينه
(۳٤ م ۲۷۸)

د توانګر له وجه اطلس له شړۍ سره تشبيه شوی دی، اطلس ( مشبه ) شړۍ ( مشبه به ) کم ارزښت يې ( وجه شبه ) ده د ناداری په وجه بيا شړۍ ( مشبه ) او اطلس د (مشبه به ) ځای نيولی دی او د ( ارزښت ډېروالی ) يې وجه شبه ده.

په خوښيه کې زاړه لکه زلمي شي
ځوان زلمی تر زاړه لا کاندي ستوه
(۳٤ م ۲۸٤)

لومړی د خوښۍ په وجه (زوړ) له ځوان سره تشبیه شوی، چې وجه شبه یې (مستي) ده او بیا د ستونزو له مخې ځوان له زوړ سره تشبیه شوی چې وجه شبه یې (بې حرکته پاتې کېدل) دي.

ستا په غم کې لکه زه یم بل به نه وي
دروغـــژن یم که بل هسې لکه زه وي
(۳۴ م ۳۹۶)

د محبوب دغم له وجه یې په تفضیلي بڼه ځان له بل کس سره تشبیه کړی ، بیا یې د تاکید په خاطر چې زه ستا غم لرم بل کس له ځان سره تشبیه کړی دی.

مړه وده وته ژوندي وي ژوندي مړه وي
د درویـــــش هــــو مره قوت دی د دعا
(۳٤ م ۱۰)

مړه (مشبه) ژوندي (مشبه به) وجه شبه یې (د الله په بندګۍ کې سکون) دی،ژوندي (مشبه) مړه (مشبه به) (د اخرت احساس نه درلودل) یې وجه شبه ده.

II - د وجه شبه د تغییر په بڼه: په دې ډول تشبیه کې د مشبه او مشبه به ځای بدلون نه مومي بلکې د عادي وجه شبه غرض تضاد وي ، یعنې کوم شیز چې له بل شیز سره تشبیه کېږي د (مشبه به) د صفت ضد اړخ به په (مشبه) کې لټوو. دبېلګې په ډول که (سپین) شیز راوړل شي مراد به ځنې (تور) وي. ما یې د خوشحال خان خټک په کلیاتو کې کره بېلګه په لاس رانه وړه نو د بېلګې په ډول یې د الاندې بیت راوړم:

مېلمانه دې وږي درومي له درباره
تــــه زموږ د زمانې سخي حاتم یې
(۵ م ۷۳)

په پورته بیت کې مخاطب (مشبه) سخي حاتم (مشبه به) دی ، د وجه شبه له مخې حاتم طایي په سخاوت کې د شهرت خښتن و او مخاطب په کنجوسۍ کې شهرت ته رسېدلی دی ، ځکه میلمانه یې له دربار څخه وږي درومي، یعنې د مشبه او مشبه به ترمنځ په(سخاوت او کنجوسۍ) کې زیاتوالی د وجه شبه تضاد دی.

حاتم طايي په سخاوت کې شهرت لاره او مخاطب يې په کنجوسۍ کې هماغومره لري.

۵- د عدد او شمېر له مخې: په دوو ډولو ده (جمع او تسويه)
الف- جمع تشبيه: چې په کلام کې د يوه (مشبه) لپاره تر يوه ډېر (مشبه به) راغلي وي، په بله وينا په دې تشبيه کې يو شي ته له څو څيزونو سره تشبيه ورکړل شوې وي، ته به وايې په دې يو شي کې دا ټولې معناوې را جمع شوي دي:

تـــا وته د خپلو شونډو قدر ښکاره نه دی
مازده چې عسل دی يا نبات دی يا شکر
(۳٤ م ٦۰)

شوندې (مشبه) عسل، نبات او شکرې درېواړه (مشبه به) دي، وجه شبه يې (خوږوالی) دی.

که سبر که عرعر که صـــــــنوبر ستا تر قامته
څه نورې دباغ ونې؟ چې په څېر ستا د بلا بل
(۳٤ م ۱۰۸)

د محبوب قامت (مشبه) سبر، عرعر او صنوبر (مشبه به) دي، ديوه مشبه لپاره درې مشبه به راغلي دي وجه شبه يې (لوړوالی) دی.

ډار کـــــړمـــــه لازم شم چې پرېشانې کړې خبرې
مېښک دي که عنبر دي ستا پرېشان پرېشان کاکل
(۳٤ م ۱۱۰)

د محبوب پرېشان کاکل (مشبه) مېښک او عنبر دواړه (مشبه به) دي. وجه شبه يې (خوشبويي) ده.

ستا د خولې چينه خنظل ده هم عسل ده
و هـــــرچـــــاته تويونه د عسل کړه
(۳٤ م ۲۸۱)

د مخاطب خوله ( مشبه ) خنظل او عسل ( مشبه به ) دي ، له خنظل سره يې وجه شبه ( تريخوالی ) او له عسل سره يې وجه شبه ( خوږوالی ) دی.

چې په دا هسې جمال ورځنې زو وې
بــــوره مور دې ښاپيريه وه که حوره
(٣٤ م ٣٠١ )

د مخاطب مور ( مشبه ) ښاپيرۍ او حوره ( مشبه به ) دي. وجه شبه يې ښکلا ده.

د دنــــــيا مثال که وګورې عاقله
په حساب لکه اوبه يا لکه باد دی
(٣٤ م ٣٢٤ )

دنيا ( مشبه ) اوبه او باد ( مشبه به ) دي ، لمنځه تلل او حرکت يې (وجه شبه ) ده.

دا بــــې درد کــــه په ظاهر سړي ليده شي
و خوشحال ته مچ ميږي دي ماشي سپږې
(٣٤ م ٤٤٩ )

بې درده ( مشبه ) مچ، ميږي ،ماشي او سپږې ( مشبه به ) وجه شبه يې ( ارزښت نه لرل ) دي.

يــــا بــــــه دديــــا په منګور يا به لړم يې
که داړل کړې يا چيچل يا په چانېش يې
(٣٤ م ٢٨٧ )

غايب ( مشبه ) دد ، منګور او لړم ( مشبه به ) دي ، له دده سره يې وجه شبه ( څيرل ) له منګور سره يې وجه شبه ( چيچل ) او له لړم سره يې وجه شبه نېش لګول دي. په مجموع کې وجه شبه يې ( ضرر رسول ) دي.

ب - تسويه: په ژبه کې برابر والي ته وايي، که چرته په کلام کې ګڼ (مشبه ) راغلي وي او بيا ددې ټولو لپاره يو ( مشبه به ) راوړل شي ، په بله وينا چې ډېرو څيزونو ته يې له يوه څيز سره تشبيه ورکړې وي. ته به وايې دا ټول څيزونه په دا يوې معنی کې سرا برابر دي.

مــــــيړني سپاره د مخ دي دا دوه توکه

توري وروځې توري سترګې مخ لښکر
(۳٤ م ٥١)

توري وروځې ، توري سترګې ( مشبه ) مېړني سپاره ( مشبه به ) دي، چې يو ډول راغلې دي. وجه شبه يې ( لمنځه وړل او تر تاثير لاندې راوړل ) دي، دا چې د دوو مشبه وو لپاره يو مشبه به راغلی دی ، نو ځکه يې تسويه بولي. همدارنګه مخ ( مشبه ) او لښکر ( مشبه به ) چې په دې کې تسويه نشته.

سترګو ته يې وګوره خوشحاله بانه ورو ځې
ســـتا د مرګ لپاره په څو جوړ لري لښکر
(۳٤ م ٦٠)

سترګې ، بانه او وروځې ( مشبه ) لښکر ( مشبه به ) دی چې مفرد راغلی دی.

که يې زلفې که کاکل که يې ګيسو دي
هـــمګي مـــښک تاتار دی هغه کس
(۳٤ م ۸۳)

زلفې ، کاکل او ګيسو ( مشبه ) دي ،د تاتار مښک ( مشبه به ) دی، چې يوه کلمه ده او درې څيزونو ته يې په خوشبويي کې ورسره تشبيه ورکړې ده.

ورتې ورتې اوښکې تل ساړه ساړه آهونه
ستا په درد و غم کې زه همدا لرم سامان
(۳٤ م ١٦٢)

ورتې اوښکې او ساړه آهونه ( مشبه ) د درد او غم په وخت سامان ( مشبه به ) دی چې يوه کلمه ده، مقصد ته رسېدل يې وجه شبه ده.

سترګې دي که ورورځې که يې زلفې که اوربل دی
څـــــو تـــــوري بلا دي چې مې زړه پکې قبل دی
(۳٤ م ۳۳۳)

سترګې ، وروځې زلفې او اوربل ( مشبه ) دي. توري بلاوې ( مشبه به ) دي ،چې يوه کلمه ده وجه شبه يې ( په غم اخته کېدل ) دي.

څــــلور واړه عنصره چا کران دي ای خوشحاله

چاکر هغه خدمت کا چې صاحب ورته فرمايي
(۳٤ م ۳۸۲)

څلور واړه عنصره (اوبه، اور، باد او خاوره) مشبه دي او چاکران (مشبه به) واقع شوي دي، وجه شبه يې (د امرمنل) دي.

يو غفلت بل جهالت دريم شهوت دی
د خـــوشحال د ځان بلا دي هم دا درې
(۳٤ م ٤۳۷)

غفلت، جهالت او شهوت (مشبه) بلا (مشبه به) دی، (په مصيبت اخته کېدل) يې وجه شبه ده، يعنې دا درې واړه (غفلت، جهالت او شهوت) په مصيبت اخته کولو کې د بلا غوندې برابر دي.

٦ - د ماهيت له مخې: د ماهيت له مخې تشبيه په څلور ډوله ده:

الف – محسوسه له محسوسې سره: چې د تشبيه دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) حسي راغلې وي، يا په بله وينا چې د تشبيه دواړه خواوې د ذات نوم وي:

عاشقان په معشوقو باندې پتنګ دي
لـــــه جـــهانه به لاړ نشي دا د ستور
(۳٤ م ٥۳)

عاشق (مشبه) پتنګ (مشبه به) سوزېدل يې (وجه شبه) ده. عاشق او پتنګ دواړه حسي يا د ذات نومونه دي.

مـــــګر زه سهل غرڅه وم ستا تر پامه
چې زما په مرګ دې هېڅ تکبير ونه کړ
(۳٤ م ۷٥)

متکلم (مشبه) غرڅه (مشبه به) (د ويشتلو پر وخت د وېرې نه لرل) يې وجه شبه ده. متکلم او غرڅه دواړه حسي دي.

تــــه له ځايه هسې نه وې د اڅۀ حال دی؟
چې په ما باندې دې زړه دا هسې سنګ کړ

(۳٤م ۷۸)

د محبوب زړه (مشبه) سنګ (مشبه به) (کلکوالی او رحم نه کول) یې وجه شبه ده ، زړه او سنګ دواړه د ذات نومونه دي.

چې یې دواړه شونډې کښل کړم پرې محظوظ شم
څـــوک بـــه هـــم په مې خوړل نه وي محظوظه

(۳٤م ۹۲)

شونډې (مشبه) مې (مشبه به) و جه شبه یې(لوړ کیفیت) دی ، شونډې او مې دواړه محسوس نومونه دي.

ذوالفقار یې اژدهاو دوې یې ژبې
چې د دین مخالفان یې وو خوراک

(۳٤م ۱۰۳)

ذوالفقار (مشبه) اژدها (مشبه به) و جه شبه یې (له منځه وړل) دي.
ذوالفقار او اژدها دواړه محسوس نومونه دي.

واړه عشق دی چې یې سر راته ګیاه کړ
ګنه ! زه په ځان مین د سر ښندل څوک

(۳٤م ۱۰٤)

سر (مشبه) ګیاه (مشبه به) ارزښت نلرل یې (وجه شبه) ده ،سر او ګیاه دواړه محسوس نومونه دي.

لکه سېب زما په خوله کې
غــــه شرین ذقن وای تل

(۳٤م ۱۰۹)

ذقن (مشبه) سېب (مشبه به) خوږوالی یې (وجه شبه) ده. ذقن او سېب دواړه محسوسې کلمې دي.

چې په خوب شم ستا له خیاله سره خواب کړم
چـــې بیدار شم د مخ سود دې په افتاب کړم

(۳٤م ۱۲۲)

د محبوب مخ ( مشبه ) افتاب ( مشبه به ) وجه شبه يې ( نورانيوالى ) دى ، مخ او افتاب دواړه محوسې کلمې دي.

چې ډېر ډېر يې کښلي مخ ته کتی نشم
دواړه سترګې يې مزري دي ځنې ډار کړم
(٣٤م ١٣٢ )

دواړه سترګې ( مشبه ) مزري ( مشبه به ) ( په ښکار پسې تلاش ) يې وجه شبه ده ، سترګې او مزرى محسوسې کلمې دي.

خلق تشې تسلې کا زه له ځلې
د هلک غوندې د هر سړي په خوله شم
(٣٤م ١٤٦ )

متکلم ( مشبه ) هلک ( مشبه به ) غوليدل يې ( وجه شبه ) ده. متکلم او هلک محسوس نومونه دي.

په کاته شم و عالم و ته حيران
چې د نس لپاره څه کا دا سګان
(٣٤م ١٥٣ )

عالم ( مشبه) سګان ( مشبه به ) او د نس لپاره په مرداره ښښتل يې (وجه شبه) ده ، عالم او سګان دواړه محسوس نومونه دي.

زړه مې لکه ګوى دى د مستيې په ميدان کې
تل يې هغه ترک وهي د زلفو په چوګان
(٣٤م ١٦٠ )

زړه او زلفې ( مشبه ) دي ګوى او چوګان ( مشبه به ) چې ټول محسوس نومونه دي.

د ښو په ناوکيو دې غلبېل کړ
ښښانه مې درته ځان دى لکه و
(٣٤م ١٨٢ )

بانه او ځان ( مشبه ) ناوکي او ننبان ( مشبه به ) ټول محسوس دي.

پیغام راوړي د وصل ، عجب ښه راځي په مهر
هـــد هـــد د یار له لوریه نن په ما باد سبا شو
(۳٤ م ۱۸٦ )

د سبا باد ( مشبه ) هد هد ( مشبه به ) د پیغام راوړل یې( وجه شبه ) ده. باد او هد هد محسوس دي.

د خپل پله خاورې دې بیه په عنبر کړې
درتــــه چــاوې چې په دا بها یې پلوره
(۳٤ م ۲۱۰ )

د محبوب د پله خاورې ( مشبه ) عنبر ( مشبه به ) خوشبویي یې (وجه شبه ) ده ، مشبه او مشبه به د واړه محسوس دي.

یو زړه د خوشحال نه دی چې جهان پکې لیده شي
د هـــــر چــا زړه مراءت دی صفایي ورلره بویه
(۳٤ م ۲۷۲ )

زړه ( مشبه ) مرات ( مشبه به ) ( پاکوالی ) یې وجه شبه ده. زړه او مرات دواړه محسوس دي.

شوندې دې حلوا دي عاشقان د حلوا وږي
ښــــه په وږیو ځه ، په پلو پټه دا حلوا وړه
(۳٤ م ۲۹۸ )

شونډې ( مشبه ) حلوا ( مشبه به ) او خوږوالی یې (وجه شبه ) ده ، چې مشبه او مشبه به دواړه محسوس دی.

هېڅ خـــبره نه وه چې به ماتر خولې ایسته
ستا د خولې تشبیه مې غوټۍ ولې راوسته
(۳٤ م ۳۰۳ )

د مخاطب خوله ( مشبه ) غوټۍ ( مشبه به ) ښکلا یې (وجه شبه ) ده ، چې مشبه او مشبه به د واړه محسوس دي.

زړه مې ستا په زلفو بند شو تا کباب کړ

څوک شهباز هم د کباب لپاره نيسي ؟

(٣٤ م ٣٥٢)

د متکلم زړه ( مشبه ) شهباز ( مشبه به ) دی، دواړه محسوس دي.

څومې ستا مړوند د سر سرو بېړ دی نه شي

ســـر به هېڅکله کښې نږدم په سرو بېړ دي

(٣٤ م ٣٥٦)

د مخاطب مړوند ( مشبه ) سرو بېړدی ( مشبه به ) ، دواړه محسوس دي.

زویه پلار سره کارونه د غلیم کا

لونه مور ته لکه بنې دي تیارې

(٣٤ م ٤٣٨)

زوی ( مشبه ) غلیم ( مشبه به ) ، لونې ( مشبه ) بنې ( مشبه به ) چې دواړه محسوس دي.

ب - معقوله لـه معقـولې سره : کـه مشبه او مشبه بـه دواړه د معنی نومونـه وي ، پـه سترګو نه لیدل کېږي، د لمس وړ نه وي ، نو نوموړې تشبیه یې بولي:

که څوک غواړي چې خپل زړه په غم اخته کا

اشـــــنايــــــي ده لاس پــــــه لاس فتنه تیاره

(٣٤ م ٢٠٩)

اشنا يي ( مشبه ) فتنه ( مشبه به ) ، ( پـه غـم اختـه کـول ) يې وجه شبه ده. اشنايي او فتنه دواړه د معنی نومونه دي.

د وه قدمه بېلتون هم له یاره مرګ دی

څـوک به څو پايي ژوندي له یاره لرې

(٣٤ م ٤٣٤)

بېلتون ( مشبه ) ، مرګ ( مشبه به ) ( حرکت نه کول ) يې وجه شبه ده. بېلتون او مرګ دواړه د معنی نومونه دي.

د عشق بخره عطایي لکه ایمان ده

مونده نشي په کوښښ په ځلي ځلې
(٣٤ م ٤٥٢)

د عشق بخره ( مشبه ) ایمان ( مشبه به ) د ازل ورکړه يې( وجه شبه ) ده.
د عشق بخره او ايمان دواړه د معنى نومونه دي.

چې د خلکو نېکخواهي لرې په زړه کې
مـــبارک شه بادشاهي لرې په زړه کې
(٣٤ م ٤٧٢)

نېکخواهي ( مشبه ) بادشاهي ( مشبه به ) وجه شبه يې ( خير رسول ) دي.
نېکخواهي او بادشاهي دواړه د معنى نومونه دي.

ج - محسوسه له معقولې سره: که مشبه ( حسي ) وي او مشبه به ( معقول ) راغلى وي يا دا چې مشبه د ( ذات ) نوم وي او مشبه به د ( معنى ) نوم راغلى وي.

په سپينوالي د مخ سپين لکه مومنه
پـــه تـــوروالـي دطرې لکه کافره
(٣٤ م ٢١٥)

د مخ سپينوالى ( مشبه ) مومن ( مشبه به ) ، سپينوالى ، سپيځلتيا يې ( وجه شبه ) د طرې توروالى ( مشبه ) کافره ( مشبه به ) ( توروالى ) يې وجه شبه ده. د مخ سپينوالى او د طرې توروالى محسوس نومونه دي ، مومنه او کافره د معنى نومونه دي.

بخت غوندې نا ګاهه زما خوار کره سيده شوې
راغـــله دې په قصد وو ، که دا راغلې بې نمطه
(٣٤ م ٢٢٦)

مخاطب ( مشبه ) بخت ( مشبه به ) په ناڅاپي ډول پېښېدل يې (وجه شبه) ده.
مخاطب محسوس نوم دى ، بخت د معنى نوم دى.

پـــه بلبلو د ګل بوى لکه وصال دى
که يې رنګ په سترګو نه وينې نديمه

(۳٤ م ۲۳۸)

د ګل بوی (مشبه) محسوس دی. وصال (مشبه به) معقول دی. وجه شبه یې (خوښي) ده.

اشرف سره تر سره نفس اماره دی
په حسد په حماقت کې اواره دی
(۳٤ م ۳٥٤)

اشرف (مشبه) نفس اماره (مشبه به) (په غلطو لارو تلل) یې وجه شبه ده. اشرف د خوشحال خټک مشر زوی دی، چې محسوس دی او نفس اماره معقول نوم دی.

چې په تلل شوې له خوشحاله لکه عمر
کـــه یـــــې ډېره بلا کړه نه درېدلې
(۳٤ م ٤٥۳)

مخاطب (مشبه) عمر (مشبه به) دی، نه پاتې کېدل یې (وجه شبه) ده. مخاطب محسوس او عمر معقول نوم دی.

د – معقوله له محسوسې سره: چې مشبه د معنی نوم (عقلي) وي او مشبه به د ذات نوم (حسي) وي:

چې مشال یې د جمال راته ښکاره کړ
بــــیا به ما باندې پتنګ کا هغه یار
(۳٤ م ٦٥)

جمال (مشبه) چې معقول نوم دی او مشال (مشبه به) دی چې حسي دی، د دواړو ترمنځ نوراني والی او ښکلا (وجه شبه) ده. په دویمه مسره کې متکلم (مشبه) او پتنګ (مشبه به) دی، چې دواړه محسوس دي.

چــــې د صبر په آهن مې وتړلی
تا د زلفو په حلقه هغه ورمات کړ
(۳٤ م ۷٦)

صبر (مشبه) دی چې معقوله کلمه ده او آهن (مشبه به) دی، چې حسي راغلی ده.(بندول او کلکوالی) یې وجه شبه ده.

د ښــــه یار دیدن د دواړو سترګو نور دی

خدای دې نه کا د هیچا سترګې بې نوره
(۳٤ م ۳۰۲)

د یار دیدن( مشبه ) د سترګو نور( مشبه به ) ، سکون او ارام یې( وجه شبه ) ده (دیدن) د معنی نوم دی او نور د ذات نوم دی.

پــه دادوه سواره د مخ یعنې ستا سترګې
تا مې درست دپار سا ییه لښکر مات کړ
(۳٤ م ۷۲)

د محبوب دوه سترګې یې لـه سوارو سره تشبیه کړي، چې دواړه حسي دي. خو په دویمه مسره کې پارسایي( مشبه ) چې معقول دی او لښکر( مشبه به ) چې محسوسه کلمه ده او وجه شبه یې( ساتل ، دفاع کول ) دي.

نصیحت د دانا یانو لکه باد دی
د وګړي خود رایې دي چې کېږي
(۳٤ م ۳۸۳)

نصیحت(مشبه )او باد (مشبه به ) دی ، په ځای نه پاتې کېدل یې وجه شبه ده ، نصیحت د معنی نوم دی او باد د ذات نوم دی.

چـــــې یې توره د غمزو راته تېره کړه
اوس خو به شهیدي ده ستا په وړاندې
(۳٤ م ٤۲۸)

غمزه (مشبه)، توره (مشبه به) ، وژل او شهیدول یې (وجه شبه) ده. غمزه د معنی نوم دی او توره د ذات نوم دی.

فهم وکړه چې ضایع در څخه نشي
لـــــکه در بــــې بهادی دا نفس
(۳٤ م ۸٤)

نفس ( مشبه ) عقلي دی ، همدارنګه در( مشبه به ) حسي دی( بې بها ) یې وجه شبه ده.

د همت په بال و پر سړی الوزي
مـــرغه پورته الواته کا په وزرو

(۳٤ م ۱۷۱ )

همت ( مشبه ) معقول دی ، بال او پر ( مشبه به ) محسوس دی ، پرمختګ یې( وجه شبه ) ده.

عـــارفان د قناعت په ګنج توانګر دي
چې یې نه راځي د خلکو مال په سترګو

(۳٤ م ۱۷۹ )

قناعت ( مشبه ) معقول نوم دی ، ګنج ( مشبه به ) دی چې محسوسه کلمه ده ، ( د خلکو مال ته سترګې نه نیول او مړښت ) یې وجه شبه ده.

چې په زړه یې د وحدت ډیوه شوه بله
تـــجلی به یې له مخه ځي افتاب شو

(۳٤ م ۱۸۹ )

وحدت (مشبه ) معقول نوم دی ، ډیوه ( مشبه به ) دی، چې محسوس راغلی دی.

په نوبت به د هر چا تر ځیګر خېژي
د قـــــضانــېزه و هر چا وته نېغه

(۳٤ م ۲۲۸ )

قضا ( مشبه ) معقول دی ، نیزه ( مشبه به ) چې محسوس دی ، لـه منځه وړل یې ( وجه شبه ) ده.

چې دوه ښه خوارږه مین سره دلګیر کا
د غـــمازو وینا څه د سترګو خس ده

(۳٤ م ۲۷٦ )

د غمازو وینا ( مشبه ) معقول ده او د سترګو خس ( مشبه به ) محسوس دی.

تا چې واغوستې د خیال جامې رنګینې
بـــــله ســـتا پـــــه ډول نشته رنګینه

(۳٤ م ۲۸۸ )

(خیال) معقول مشبه دی او (جامې ) محسوس مشبه به دی. (کبر او غرور ) یې وجه شبه ده.

غـــــم يې بې حکمته نه دی پیدا کړی
د نامرد د مرد په منځ کې غم محک دی
(۳٤ م ۳۲۳)

(غـم ) معقـول مـشبه دی او (محـک ) محـسوس مـشبه بـه دی.(کـره او نـا کره معلومول ) یې وجه شبه ده.

چــې د فکر مرجونا له بحره وکېښ
راشه ګوره د خوشحال کلام ګوهر دی
(۳٤ م ۳۲٤)

(فکر ) معقول مشبه دی (مرجونا ) محسوس مشبه به دی او (فعالیت او هنر مندي ) یې وجه شبه ده. همدارنګه (کلام معقول مشبه دی ، (ګوهر ) محسوس مشبه دی او (ارزښت ) یې وجه ده. (کلام ) معقول مشبه دی. (ګوهر ) محسوس مشبه به دی.

عشق یو مست هاتي ولاړ سره ښوریږي
دا پــه ځان خوني عاشق یې مهاوت دی
(۳٤ م ۳۲۸)

(عشق ) معقول مشبه دی او (مست هاتي ) محسوس مشبه بـه دی ، ( سرکښي او پـه قبـضه کـې نـه راتلـل ) یـې وجـه شـبه ده. همدرانګـه (خـوني عاشـق ) مـشبه او( مهاوت ) مشبه به دی چې دواړه محسوس دی.

علم څه دی په معنی کې ګبینه دی
کاســـــه هم ورسره بویه خراجي
(۳٤ م ۳٦۳)

( علم ) معقول مشبه دی او (ګبینه ) محسوس مشبه به دی. وجه شبه یې ( ګټه رسول ) دي.

چې همت د سړي څو قدر یې هومره
د تـــــمیز په تله هر سړی تاله شي
(۳٤ م ۳۷۱)

(تمیز ) معقول مشبه دی او (تله) محسوس مشبه به دی ، (اندازه کول) یې وجه شبه ده.

د وصال د ناوې مهر څه دی غم دی

هـــغه هم واړه يکباره معجل شي
(۳٤ م ۳۸٥)

(وصال او غم)، معقول مشبه ګانې دي (ناوې او مهر) محسوس مشبه به دي، د وصال او ناوې تر منځ وجه شبه (خوښي) ده، همدارنګه د غم او مهر تر منځ وجه شبه (تکليف او احتياج) دی.

بيا د عشق درياب راوخوت چلې چلې
عـــاشـــقان پکې لاهو شو بلې بلې
(۳٤ م ٤٥٢)

(عشق) معقول مشبه دی، (درياب) محسوس مشبه به دی، وجه شبه يې (ډوبېدل او پای نه لرل) دي.

مسلمان به درته څوک وايي خوشحاله
د هـــــوی زنار په غاړه يو ترسا يې
(۳٤ م ٤٥٨)

(هوی) معقول مشبه دی. (زنار) محسوس مشبه به دی، (ګمراهي يا لاره ورکول) يې وجه شبه ده.

۷- د طرفينو د مرکبوالي او بسيطوالي له مخې:

مخکې تر دې چې د دې ډول تشبېه ډولونه له بېلګو سره راوړو د (بسيط او مرکب) مشبه او مشبه به په تو پير به يو څه رڼا واچوو:

الف - بسيط مشبه او مشبه به: هغه مشبه او مشبه به ته وايي، چې يو ذهني انځور و ښيي او تر دې له ډېرو اجزاوو څخه تشکيل شوی نه وي په دوه ډوله دی:

- مجرد بسيط:

مجرد بسيط هغه ذهني انځور ته وايي چې يوازې يوه کلمه وي او په ترکيب کې بله کلمه يا جز ورسره نه وي راغلی. (۲۱ م ۱۰۱)

لکه: (د مخ ورته کول له ګل سره ) چې دلته مخ مشبه او ګل مشبه به دی ، چې دوا ړه ځانته ځانته یو ذهني انځور را په ګوته کوي.

- مقید بسیط: هغې کلمې ته وایي چې صفت (ستاینوم ) مضاف الیه یا د قید په ډول بله کلمه ورسره راغلې وي ، لکه: سرې شونډې له سرو یا قوتو سره ورته کول چې د شونډو او یا قوتو لپاره ( سورو الی ) د صفت په بڼه راغلی دی.

د مخ خال له بورا سره ورته کول ، چې مخ (مضاف الیه ) دی او خال ورته مضاف شوی دی ( مشبه ) دی چې د مقید بسیط په بڼه راغلی دی او بورا مشبه به دی.
ب- مرکب مشبه او مشبه به: هغه مشبه او مشبه به ته ویل کېږي ، چې د څو ذهني انځورنو له یو ځای والي څخه منځته راغلی وي، په بله وینا هغه جوړښت چې په تخییل کې له څو ذهني انځورو یعنې د کلمو له ترکیب څخه رامنځته شوی وي. (۲۱ م ۱۰۲ )

هر دم چې ډېره ځله اضطراب شي ستا دیدن ته
پــــه تـــرېي بـــاندې تل وي د اوبو مینه غالبه
(۳٤ م ۱۹۱ )

پورته مشبه له یوه مرکب جوړښت څخه تشکیل شوی ، هره ګړۍ په ډېر حرکت (خوځېدا کول د محبوب دیدن ته ) او مشبه به پرتږي د اوبو مینه غالبېدل ) هم په مرکب ډول راغلي دي.

اوس د مجردې بسیطې او مرکبې تشبیه بېلګې راوړو او د مقیدې بسیطې او مرکبې تشبیه بېلګې به تر جلا سرلیک لاندې په ځانګړي ډول راوړل شي.
یادونه: د دري ژبې او ځینو نورو ژبو کتابونو کې د بسیط لپاره د ترکیب په وړاندې مفرد لیکل شوي، چې په پښتو ژبه کې مفرد اصطلاح ته د بسیط اصطلاح راوړو.
الف - بسیطه له بسیطي سره: هغه تشبیه ده ،چې دواړه خواوې ( مشبه او مشبه به ) یې مجردې بسیطې کلمې وي:

تــر سنبلو یې ښې زلفې

تر ګلونو يې رخسار ښه
لکه در هــــسې غــاښونه
لا تر درو سپين هموار ښه
(٣٤ م ٢٦٤)

( زلفې ، رخسار ، غاښونه ) مشبه دي ، چې درې واړه مجردې بسيطې کلمې دي ( سنبل ، ګلونه او در ) مشبه به دي چې درې واړه مجردې بسيطې کلمې دي.

رقيبان دې لکه سپي دي په کوڅه کې
چــې انګړ دې پاکيزه شي واړه چغ کړه
(٣٤ م ٢٦٥)

( رقيبان ) مجرد بسيط مشبه دی او ( سپی ) مجرد بسيط مشبه به دی (چتلي او مرداري پيدا کول ) يې وجه شبه ده.

کــه زما په مرګ دې زړه دی تېغ راواخله
د قصاب غوندې مې بند په بند جدا کړه
(٣٤ م ٢٧٨)

دې (مخاطب) مجرد بسيط مشبه دی او ( قصاب ) مجرد بسيط مشبه به دی، (بند په بند پرېکول ) يې وجه شبه ده.

غــر به هم لکه وينښته هسې نرى کا
که غمونه د خوشحال کېږدي په کوه
(٣٤ م ٢٨٤)

(غر ) مجرد بسيط مشبه دی او ( وينښته ) مجرد بسيط مشبه به دی ، ( نرى کېدل ) يې وجه شبه ده.

چې په خلکو کې دوزخ دوزخ ياد يږي
بــــــل دوزخ په جهان نشته جدايي ده
(٣٤ م ٢٩١)

(جدايي ) مجرد بسيط مشبه دی او (دوزخ) مجرد بسيط مشبه به دی ، ( تکليف او کړاو ) يې وجه شبه ده.

ښکلي د ېرو ماته يار کړې
تـــل د ګلو انتخاب شته
(٣٤ م ٢٩٤ )

مخاطب ( تـه ) مجرد بسيط مشبه دی او (ګل) مجرد بسيط مشبه به دی ، ( ښکلا ) يې وجه شبه ده.

د اولاد په کار خبر شوم
اولاد واړه لړم مار دی
(٣٤ م ٣٠٩ )

( اولاد ) مجرد بسيط مشبه دی او (لړم ، مار ) مجرد بسيط مشبه به دي. (تکليف او غم ) يې وجه شبه ده.

چې هومره ښه مخونه په دا خاورو کې په ګور دي
چــــې دوی لـره ور درومم ګورو ماوته ارم دی
(٣٤ م ٣١٥ )

(ګور ) مجرد بسيط مشبه دی او (ارم) مجرد بسيط مشبه به دی. ( سکون او ارام )يې وجه شبه ده.

نـــه مـــچ يـــم نه کارغه يم چې په ګړو مړو ګرځم
يا باز يم يا شاهين يم په خپل ښکار مې زړه خورم دی
(٣٤ م ٣١٦ )

(متکلم ) مجرد بسيط مشبه دی او ( مچ ، کارغه ، باز او شاهين ) مجرد بسيط مشبه به دي.

رقـــيبان دې لکه سپي په کوڅه غاپي
هم ترې ځيرې جامې دروم هم خوړلی

(۳٤ م ۳۳۱ )

(رقیبان ) مجرد بسیط مشبه دی او (سپي ) مجرد بسیط مشبه به دی. (زیان رسلو ) یې وجه شبه ده.

عـــشق لکه پـــا چـــا دی زه په مثل د چا کریم
چاکر چې د صاحب په حکم نه وي نا معقول دی
(۳٤ م ۳٤۳ )

(عـشق ) مجـرد بـسیط مـشبه دی او (پاچـا ) مجـرد بـسیط مـشبه بـه دی، همدارنګه ( متکلم زه ) مجرد بسیط مشبه دی او (چاکر ) مجرد بسیط مشبه به دی.

ښیتانه لکه مګس وربانديې ګرځي
ورتـــه ایښی د مغل د حلوا تال دی
(۳٤ م ۳٤۷ )

(ښیتانه ) مجرد بسیط مشبه دی او (مګس ) مجرد بسیط مشبه به دی.

غاړې غرونه خبر دار دي چې مجنون یم
کـــــه جهان په دا خبر دی چې لیلا یې
(۳٤ م ٤۸۱ )

(متکلم او مخاطب) مجرد بسیط مشبه دی ( مجنون او لیلا ) مجرد بسیط مشبه به راغلي دي.

تـــــه هم خر ورسره مه شه
که څوک خر شـــي په خری
(۳٤ م ٤۹۳ )

مخاطب (ته ) مجرد بسیط مشبه دی او (خر ) مجرد بسیط مشبه به دی.

ب – مرکبه له مرکبې سره : چې مشبه او مشبه به دواړه په مرکبه بڼه راوړل شوي وي:

زما اوښکې د ګوګل په څوښ پیدا شي
لـــــکه اور چـــې له کبابه نم اخراج کا
(۳٤ م ۲ )

( لومړی مسره ) مرکب مشبه دی او دویمه مسره مرکب مشبه به دی ، (لکه ) د تشبیه توری دی.

عشق تر ځوانه نه زوړ لا کاندې نسکور
پــه پــــخه ونـــــه لا نبه لګېږي اور
(۳٤ م ٦۳ )

لومړی مسره مرکب مشبه دی او دویمه مسره مرکب مشبه به دی.

زمــــا زړه یـــې په حلقه د زلفو یو وړ
لکه لوی ماهـــي په شصت د ماهي ګیر
د شــــکرو پــــــه دکان ماهي بچه دی
که تور خال دی ستا په شونډو جای ګیر
(۳٤ م ٦٦ )

د هر بیت لومړی مسرې مرکب مشبه راغلې دي او دویمې مسرې یې مرکب مشبه به راغلې دي.

غــافلان له دې دنیا سره کالو بې
لکه پېغله جن بازي کا په لوځکو
(۳٤ م ۱۷۸ )

لومړی مسره مرکب مشبه دی او دویمه مسره مرکب مشبه به دی.(ځان غولول او بې خبري ) یې وجه شبه ده.

تا چې زلفې پېچا پېچ سره ولول کړې
پــه ګلونو کې یو تور منګور خفته شو
(۳٤ م۱۸۰ )

لومړی مسره مرکب مشبه دی او دویم مسره مرکب مشبه به دی.

لکه څوک چې له تېرو تورو وېرېږي
هسې ډار کوم زه هم ستا له عتابه
(۳٤ م ۱۹۳ )

دویمه مسره مرکب مشبه دی او لومړی مسره مرکب مشبه به راغلی دی.

لـــکه روح چــې له قالبه نه واته کا
په دا شان مې جدايي کېږي بې ياره
(۳٤ م ۲۰۹)
دويمه مسره مرکب مشبه دی او لومړۍ مسره مرکب مشبه به دی.

زړه مې ستا په لا سو در کړ تا خراب کړ
هـــلک څـــــه زده د زېبا توتا ساتنه
(۳٤ م ۲٤٥)
لومړۍ مسره مرکب مشبه دی او دويمه مسره مرکب مشبه به راغلی دي.
په معنی کلپه روپۍ ده مخ يې تور شه
هر سړی چې په ياري کې په زړه غل وي
(۳٤ م ۳۱٤)
دويمه مسره مرکب مشبه او لومړۍ مسره مرکب مشبه به دی.
د نــــاکس له تربيت سره څه کاري
د سنګېړ له زراعت سره څه کار دی
(۳٤ م ۳۲۹)
لومړۍ مسره مرکب مشبه دی او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.
چـــــې ديدن د مين وکړمه تا زه شم
لکه کښت چې په باران سره اوبه شي
(۳٤ م ۳٥۹)
لومړۍ مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.

د خپل يار د جدايۍ هسې کار دی
لکه ساه چې له وجوده په وا ته شي
(۳٤ م ۳٥۹)
لومړۍ مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.

ببلتانه زما په قـــصد چاړه تېره کړه
دقصاب دلسوزي نشي په ورغومي
(۳٤ م ۳٦٦)
لومړی مسره مرکب مشبه او دویمه مسره مرکب مشبه به دی.

د خوشحال خاطر يې هسې ځنې يو وړ تورو سترګو
لکه صيد د شاهينو تر مښوکو تـــــــر منګول شي
(۳٤ م ۳۷۰)
لومړی مسره مرکب مشبه او دویمه مسره مرکب مشبه به دی.
چې وربل دې په سپين مخ اشفته کېږي
پــــــه ماښام کې رڼا ورځ نهفته کېږي
(۳٤ م ۳۷۳)
لومړی مسره مرکب مشبه اودویمه مسره مرکب مشبه به دی.
يـو ګلزار په يوه درنګ کې شګفته شي
چې يې زلفې په بار خوباندې ولول شي
(۳٤ م ۳۸٥)
دويمه مسره مرکب مشبه او لومړی مسره مرکب مشبه به دی.
لکه بـــځن چـې حلوا خوري
عاشق سپينه خوله د شا خوري
(۳٤ م ٤۰۹)
دويمه مسره مرکب مشبه او لومړی مسره مرکب مشبه به دی.
خـــولـــه يې پټه خوره خوشحاله
باز د ښکار غوښې په غلا خوري
(۳٤ م ٤۰۹)
لومړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.
ستا په زلفو کې مې خوار خاطر ښاد نه شو

د مـــــومن په کفر ستان کې څه حرمت وي
(٣٤ م ٤٢٠)
لو مړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.

درسته شپه هسې بيدار يم
لکه لـــنګه زويـــه ژغوري
(٣٤ م ٤٢٥)
لو مړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.

دا څه بار خونه دي نه پرېشانې تورې زلفې
پـــروتـــې دي په ګلو د سنبلو پانې تاندې
(٣٤ م ٤٢٩)
لو مړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.
د ښو ناوک يې ښوی دروميې تر زړونو
د تـرکانو غشي ښوی درومي تر زغرو
(٣٤ م ٤٣٤)
لو مړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.
زړه مې ستا په زلفو بند شو پرې خوشحال شوم
لـــــېونــــی تــړلـــی ښه دی په زنځير کې
(٣٤ م ٤٨٨)
لو مړی مسره مرکب مشبه او دويمه مسره مرکب مشبه به دی.

ج – بسيط له مرکبې سره: چې په يوه تشبيه کې (مشبه) بسيطه کلمه وي او (مشبه به) په مرکب شکل راغلی وي:
لکه ګل شګفته روی تازه په باغ کې
همـــــېشه د ښو بلبلو پرې بلغاک

(۳٤م ۱۰٥ )

چون دا غزل د مرد په ستاینه کې ویل شوې ده نو دلته هم (مرد ) مجرد بسیط مشبه او هغه ګل چې تر او تازه وي او تل د بلبلو شور یې پر سر وي، مرکب مشبه به دی.

د وروستي سپرلي نرګس دی
د خـــــوشحـــال قــدر لرئ
(۳٤م ٤٩۳ )

(خوشحال) مجرد بسیط مشبه دی او ( د وروستي سپرلي نرګس دی ) مرکب مشبه به دی.

دنــــیا لکه حـــــلوا ده ښــــه شرینه مزه ناکه
حریص یې لکه مچ دی باندې غورځي نه مړیږي.
(۳٤م ۳٦۲ )

( دنیا ) مجرد بسیط مشبه دی او ( ښه شرینه مزه ناکه حلوا ده ) مرکب مشبه به دی.
(حریص) مجرد بسیط مشبه دی او ( د مچ غوندې غور ځېدل او نه مړېدل ) مرکب مشبه به دی.

د -مرکبه له بسیطې سره: چې مشبه په ترکیبي بڼه راغلی وي او مشبه به بسیطه کلمه وي:

قند و ګل سره دا هومره لذت نه کا
چـــې خوله ورکا له زورل سره امېزه
(۳٤م ۲۱۹ )

(له زورلو سره امېزه خوله ورکول ) مرکب مشبه دی او ( قند او ګل) مجرد بسیط مشبه به دي.

په خدمت کې تر صباحه لکه شمع
پـــــه یـــوه قدم ولاړې جانګدازې
(۳٤م ٤٤۸ )

(هغه محبوبې چې په یوه پښه تر صباحه ولاړې وي ) مرکب مشبه دی او ( شمع ) مجرد بسیط مشبه به دی.

د ښو څوکې يې نېغې ځي تر زړونو
چـــې تېره تېره کاته کا لکه بازې
(۳٤ م ٤٤٨)

( په تېره تېره کتو يې د ښو څوکې نېغې تر زړونو تلل ) مرکب مشبه دی او (بازې) مجرد بسيط مشبه به دی.

۸ - د طرفينو د قيد له مخې:

الف - مقيده بسيطه له بسيطې سره: چې له مشبه سره صفت ، مضاف او يا د قيد کلمه راغلې وي او مشبه به بسيط راغلی وي.

دا رنگينې معنی چېرې دي خوشحاله
چـــې را درومي لکه گل په بياض ستا
(۳٤ م ٥)

(رنگينې معنی) مقيد بسيط مشبه دی او (گل) مجرد بسيط مشبه به دی. (ښکلا او لوړ کيفيت) يې وجه شبه ده.

که د اوسپنو کلا وي چې بخت يار شي
خاوند خدای به يې اسانه لکه شپول کا
(۳٤ م ۱۳)

( داوسپنو کلا ) مقيد بسيط مشبه دی او (شپول) مجرد بسيط مشبه به دی.

له جاهل سره گلگشت لکه دوزخ دی
لـــه دانا سره راضي يم که مې بند کا
(۳٤ م ۲٥)

( له جاهل سره گلگشت) مقيد بسيط مشبه دی او ( دوزخ ) مجرد بسيط مشبه به دی.

تـــورې تـــورې زلفې کبود خال لکه کوتره
راشه که يې گورې پرې بندې يو څه شهباز دی
(۳٤ م ۳۱۳)

(شين خال) مقيد بسيط مشبه دی او (کوتره) مجرد بسيط مشبه به دی.

خپلې اوښکې مې درياب شوې

پـــــکې نـــــه مـــو مم کنار
(۳٤ م ٦٧)
(خپلې او ښکې ) مقید بسیط مشبه دی او (دریاب) مجرد بسیط مشبه به دی.
د خـوشحال دزړه خوښي نشي بې سرایه
خپل وطن یې په هر چا باندې کشمیر کړ
(۳٤ م ۷٥)
( خپل وطن ) مقید بسیط مشبه دی او ( کشمیر ) مجرد بسیط مشبه به دی.
غر ګناه راته د خس غوندې ښکارېږي
چـــې پـــه مهر کرم رایشم بخښل کړم
(۳٤ م ۱۲۷)
(غر ګناه ) مقید بسیط مشبه دی او (خس) مجرد بسیط مشبه به دی.
بخت دی که طالع دي که دا خپله فقیري ده
خـــــدای مې چې شړیه برابره د اطلس کړه
(۳٤ م ۲٦۸)
(شړۍ مې ) مقید بسیط مشبه دی او اطلس مجرد بسیط مشبه دی.
د بـــــې دردو یاري ما غنم ګڼله
چې مې وکتله سر تر پایه جو وه
(۳٤ م ۲۸٦)
( د بې دردو یاري ) مقید بسیط مشبه دی او ( غنم او اوربشې) مجرد بسیط مشبه دی.
چې بندي د یار د زلفو په کمند دی
بـــــهانه یې د خلاصیه دغه بند دی
(۳٤ م ۳۱۷)
( د یار زلفې ) مقید بسیط مشبه دی او (کمند ) مجرد بسیط مشبه به دی.
ناقابل فرزند دوزخ غوندې پیدا شي
ښــــه قابل د پلار په خونه کې ارم دی
ښه فرزند د پلار په خونه کې څراغ دی
بد فرزند د پلار په خونه کې تورتم دی

(٣٤ م ٣٤٧ )

( ناقابل فرزند ) مقید بسیط مشبه دی او ( دوزخ ) مجرد بسیط مشبه به دی ، ( ښه قابل ) مقید بسیط مشبه دی او ارم مجرد بسیط مشبه به دی.
( ښه فرزند ) مقید بسیط مشبه دی او (ځراغ) مجرد بسیط مشبه به دی ، همدارنګه (بد فرزند ) مقید مشبه دی او ( تورتم ) مجرد بسیط مشبه به دی.

چې سیلاب زما د اوښکو را روان شي
عـــــمارت زمـــــا د صـــــبر نـړوي
(٣٤ م ٤١٤ )

( زما د اوښکو ) مقید بسیط مشبه دی او (سیلاب ) مجرد بسیط مشبه به دی.
همدارنګه (زما د صبر ) مقید بسیط مشبه دی او (عمارت) مجرد بسیط مشبه به دی.

عاشقان چې تر سر تېر شي هاله کښل کا
د دلـــــبرو پـــــستې خولې لکه بخملې
(٣٤ م ٤٥٤ )

(پستې خولې ) مقید بسیط مشبه دی او (بخملې ) مجرد بسیط مشبه به دی.

ب – بسیط له مقیدې بسیطې سره : په دې ډول تشبیه کې مشبه یوازې بسیطه کلمه وي او مشبه به یکې په صفت ، مضاف او یا د قید په توري مقید شوی وي:

که جــــهان شــي تېره توره
ستا په مرګ شي خلک خبر
(٣٤ م ٥٢ )

( جهان ) مجرد بسیط مشبه دی او ( تېره توره ) مقید بسیط مشبه به دی.

دولت څه دی ؟ په مثال ښایسته ناوې
د نـــــامـــــرد کره یې عمر وي په اور

(۳٤ م ٥۸)

(دولت) مجرد بسیط مشبه دی او (ښایسته ناوې) مقید بسیط مشبه به دی.

حاسد مې لکه کاڼی د صحرا په هېڅ حساب دی
په قدر په قیمت کې یا یـــاقـــوت یم یا الماس

(۳٤ م ۸۹)

(حاسد) مجرد بسیط مشبه دی او (د صحرا کاڼی) مقید بسیط مشبه به دی.
(متکلم) مجرد بسیط مشبه دی او ( یاقوت او الماس ) هم مجرد بسیط مشبه به دي.

په هر لور مې غورځوي په سر لګېږم
زمـــانې کړم لکه سنګ د منجنیق

(۳٤ م ۱۰۱)

( متکلم) مجرد بسیط مشبه دی او ( د منجنیق سنګ) مقید بسیط مشبه به راغلی دی.

دا دنـــیا خار ښتي بزه ده په ساتل یې څه مزه ده
شپون یې و شړي بزونه چې یې پوه شي له خارښته

(۳٤ م ۱۹۷)

( دنیا ) مجرد بسیط مشبه دی او ( خارښتي بزه ) مقید بسیط مشبه به راغلی دی.

مـــاوې عشق خو یو ښه ځیز دی خبر نه وم
چې دی لا تر مست هاتي نه خونخواره دی

(۳٤ م ۳٤۹)

( عشق ) مجرد بسیط مشبه دی او ( مست هاتي ) مقید بسیط مشبه به دی.

دنیا د مست هاتي په خوی خصلت ده که یې ګورې
چـــې یـــو مـــهاوت و مړ بل یې شاته تیاربږي

(۳٤ م ۳۸۸)

(دنیا ) مجرد بسیط مشبه دی او (مست هاتي) مقید بسیط مشبه به دی.

ج – مقيده بسيطه له مقيدې بسيطې سره: که په يوه تشبيه کې له مشبه او مشبه به دواړو سره صفت ، مضاف يا د قيد کلمه راغلې وي، نو موږ ې تشبيه بلل کېږي.

توربانه يې تور توبري په زړه څر خېږي
که راپـــورته محبوبا سترګې شهلا کا
(۳٤ م ۷)

(تور بانه ) مقيد بسيطه مشبه دی او ( تورتوبري ) مقيد بسيطه مشبه به دی.

بـــــد عمل لېونی سپی دی
چې حملې په خپل کنډک کا
(۳٤ م ١٤ )

( بد عمل) مقيد بسيط مشبه دی او (لېونی سپی ) مقيد بسيط مشبه به دی.

دوې دې تـــورې سترګې لکه دوې تورې بلا
دوې دې تورې وروځې لکه دوې تورې تر ملا
(۳٤ م ١٧ )

( دوې دې تورې سترګې ) مقيد بسيط مشبه دی او ( دوې تورې بلا ) مقيد بسيط مشبه به دی ، ( دوې دې تورې وروځې ) مقيد بسيط مشبه دی او ( دوې تورې تر ملا ) مقيد بسيط مشبه به دی.

د شوم سړي له کوره که اوبه وي د حيات
پـــه ما باندې لګېږي لکه زهر د ممات
(۳٤ م ۳۹ )

(د حيات اوبه ) مقيد بسيط مشبه دی او ( د ممات زهر) مقيد بسيط مشبه به دی.

طبع د خوشحال ده لکه ښه باغبان په باغ کې
ګـل د هر چا ور کا چې يې زړه وي على الفور
(۳٤ م ٤٩ )

( د خوشحال طبع ) مقيد بسيط مشبه دی او ( پـه بـاغ کې ښـه باغبـان ) مقيد بسيط مشبه به دی.

هــنر مند سړی په هر ديار عزيز وي
په هر ځای قدر و قيمت لري سره زر
(٣٤ م ٦٩ )

( هنر مند سړی ) مقيد بسيط مشبه دی او ( سره زر ) مقيد بسيط مشبه به دی.

عـــــشق يـــــې د زلفينو لکه زهر د مارونو
ښوري په ځيگر کې دواړه لب يې دي ترياق
(٣٤ م ١٠١ )

( د زلفينو عشق ) مقيد بسيط مشبه دی او ( د مارونو زهر ) مقيد مشبه به دی.
( دواړه لب ) مقيد بسيط مشبه دی او ( ترياق ) مجرد بسيط مشبه به دی.

د خــــــوشحال شعر حلوا ده د شکرو
ستا په دا حلوا څه کار غول خوره خره
(٣٤ م ٢١٢ )

(دخوشحال شعر ) مقيد بسيط مشبه دی او ( د شکر و حلوا ) مقيد بسيط مشبه به دی.
پـه دويمـه مـسره کې بيـا (سـتا ) مجـرد بـسيط مـشبه دی او ( غـول خور خر ) مقيـد بسيط مشبه به دی.

د گلونو پاڼې بويه چې کميس شي د ملوکې
د وريښمو د کميسه يې نازک بدن ملول دی
(٣٤ م ٣٤٤ )

( د ملوکې کميس ) مقيد بسيط مشبه دی او ( د گلونو پاڼې ) مقيد بسيط مشبه به دی.

دواړه شونډې دې خوږې شکر پارې دي
د گــــــلابو گل دې دواړه رخسارې دي
(٣٤ م ٣٨٠ )

( دواړه شـونډې ) مقيـد بـسيط مـشبه دی او (خـوږې شـکر پـارې ) مقيـد بـسيط مـشبه بـه دی. (د گلابـو گـل ) مقيـد بـسيط مـشبه بـه دی او (دواړه رخسـارې) مقيـد بسيط مشبه دی.

خپل ځان و ته يې وايي خوشحال دا خوږې خبرې
حلوا ده د نباتو که تـــر خــــوله دې د احلوا شي

(٣٤ م ٣٨٧)

( خوږې خبرې ) مقید بسیط مشبه دی او ( دنباتو حلوا ) مقید بسیط مشبه به دی.

توري سترګې ستا دې ای زیبا نګارې مستې
تـــور نرګس شهلا دي ای زیبا نګارې مستې

(٣٤ م ٤٢٦)

( توري سترګې ) مقید بسیط مشبه دی او ( تور نرګس شهلا ) مقید بسیط مشبه به دی.

د - مقیده بسیطه له مرکبې سره : چې لـه مشبه سره صفت ، مضاف یا د قید کلمه راغلې وي او مشبه به ترکیبي بڼه ولري.

د خوشحال درندۍ حال هسې ښکاره شو
لکه بـــانګ چـــې مـــوءذن په مناره کا

(٣٤ م ١٩)

( د خوشحال رندي ) مقید بسیط مشبه دی او ( په مناره د موذن بانګ ویل ) مرکب مشبه به دی.

ستا له تورو شهلا سترګو یې سیالي کړه
نـــــرګس ځکه کېښود سرد دار په چوب

(٣٤ م ٣٦)

( تورې شهلا سترګې ) مقید بسیط مشبه دی او (دار پر سر د نرګس سر ایښودل ) مرکب مشبه به دی.

د خوشحال په زړه یې هسې چارې وکړې
لکه بـــــاز چې زرکه یوسي په منګولو

(٣٤ م ١٦٩)

( د خوشحال زړه ) مقید بسیط مشبه دی او ( دباز په منګولو کې د زرکې وړل ) مرکب مشبه به دی.

و عاشق ته نصیحت په مثال څه دی
لکـــــه اور پـــه پوکولو تازه کېږي

(۳٤ م ۳۸۱)

(عاشق ته نصيحت) مقيد بسيط مشبه دی او (د اور په پوکولو تازه کول) مرکب مشبه به دی.

په بل ځای مې پېرزونه يې د يار غمه
ته زما د زړه د مات کودي ريحان يې
(۳٤ م ٤٦٤)

(د يار غم) مقيد بسيط مشبه دی او (د زړه د مات کودي ريحان) مرکب مشبه به دی.

هـ- مرکبه له مقيدې بسيطې سره: چې مشبه مرکب راغلی وي او له مشبه به سره صفت، مضاف يا د قيد کلمه راغلې وي:

مخ دې هسې شان ليده شي په خالونه
کـــــه يـــــې ګورې لکه ګل د پېغمبر
(۳٤ م ٥١)

(مخ دې هسې شان ليده شي په خالونه) مرکب مشبه دی او (ګل د پيغمبر) مقيد بسيط مشبه به دی.

سپين نمري اغوستي په پښو سرې کوښې نو خطه
څـــــه رنګـــــه رادورمي لکه تکه سپينه بته
(۳٤ م ۲۲٥)

(سپين نمري اغوستي په پښو سرې کوښې نو خطه او د هغې راتلل) مرکب مشبه دی او (تکه سپينه بته) مقيد بسيط مشبه به دی.

چـــې د زفلو نافې تل، تل خڼدوې د باد و مخ ته
خوشحال خو د په تا پوهېږي چې هو سيه د ختايې
(۳٤ م ٤٧٦)

( دزلفو نافې د باد و مخ ته تل ځنډوهل ) مرکب مشبه دی او ( د ختا هوسۍ )
مقید بسیط مشبه به دی.

دا یو ستوری د اسمان دی که ټیکه ده
چــــې یې ایښې په جبین هسې لرې
(٣٤ م ٤٨٨ )

( په جبین باندې د ټیکې ایښودل ) مرکب مشبه دی او ( د اسمان ستوري )
مقید بسیطه مشبه به دی.

٩-د قوت او ضعف له مخې: د قوت او ضعف له مخې تشبیه په دریو ډولو ده:
الف-اعلی تشبیه: دا ډول تشبیه چې خبره د قوت او ښکلا تر وروستي بریده
رسوي په دوو ډولو ده:

- بلیغه تشبیه: هغه تشبیه ده ،چې د تشبیه دواړه خواوې مشبه او مشبه به پکې راوړل شوي وي ، خو وجه شبه او د تشبیه توري پکې نه وي راغلي. (٢٦ م ٤٩ )

دې ډول تشبیه ته ځکه بلیغه وایي چې لوستونکی د مشبه او مشبه به ترمنځ بې له دې چې وجه شبه او توري راوړي. پخپل فکري ځواک وجه شبه پیدا کوي او په دې سره په تشبیه کې قوت لا پسې زیاتیږي او د مشبه به غوره والی پر مشبه د یو تناسب له مخې کیږي. که چرته وجه شبه راوړل شي مشبه په یو ځانګړي صفت پورې تړي او که چرته توري ورسره راوړل شي نو د مشبه او مشبه به اړیکه لا را څرګنده شي ، چې بیا دې تشبیه ته ضعیفه وایي.

سترګو ته یې وګوره څه ځنې توري زلفې
څر په سنبل زار کې دوه هوسیه دختن کا
(٣٤ م ١١ )

لومړۍ مسره مرکب مشبه دی او دویمه مسره مرکب مشبه به راغلی دی. وجه شبه د تورو ځنو او زلفو په منځ کې سترګو ته له کتلو څخه داسې یو کیفیت دی لکه دوه هوسۍ چې دختن په سنبل زار کې څرکوي، چې ډېر فکر او

سوچ غوارېي او په هغه کیفیت ځان پوه کړي.

که ځان غوارې خوشحاله له چشمانو یې حذر کړه
خپل ځان وژني تمځری چې شاهین سره پیوند کا
(۳٤ م ۱۷)

(ځان) مجرد بسیط مشبه دی او (تمځری) مجرد بسیط مشبه به دی، همدارنګه وجه شبه د دواړو ترمنځ کمزوري ده، (چشمان) مشبه او شاهین مشبه به دی، وجه شبه د دواړو ترمنځ (طاقت، زور او ښکار دی) چې غور او فکر غواړي.

د غمزې په تېغ مې وژنه صرفه مه کړه
څــــوک به نه غواړي له تانه ساز زما
(۳٤ م ۲۱)

(غمزه) مشبه او (تېغ) مشبه به، (درد او غم رسول) وجه شبه ده، چې غور غواړي.

دا چیستان د یار د شونډو راته حل شو
اوربـــــده شو یو ځای نقل هم شراب
(۳٤ م ۳٤)

(شونډې) مشبه او (شراب) مشبه به (لوړ کیفیت) وجه شبه ده، همدا شان نقل (مشبه به) او غاښونه (مشبه) دي، چې دلته غاښونه نه دي راغلي نو د شونډو په قرینه غاښونه ترې مرادېږي چې استعاره ده.

- مضمره یا ضمني تشبیه: دا هغه ډول تشبیه ده، چې پر وجه شبه او تورو سربېره چې نه راوړل کېږي، د تشبیه دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) داسې څرګند او ښکاره نه وي، یوازې کولای شو، چې د معنی د قرینې له مخې د دواړو خواوو په تشخیص او ټاکلو بریالي شو. (۲٦ م ٥٠)

د نـــاکس له اشنایۍ توبه توبه
د شونټې له رونا یۍ توبه توبه
(۳٤ م ۲۸۰)

لومړی مسره ( مشبه ) ده او دویمه مسری ( مشبه به ) ده ، وجه شبه یې ( خیر نه رسېدل ) دي.

نامرد مل د چا مل مه شه
ســـر په بد نايي کل مشه
(٣٤ م ٢٩٨ )

لومړی مسره ( مشبه ) ده او دويمه مسره مشبه به ده. دلته هم (د ګټې پر ځای تاوان رسول ) وجه شبه ده.

لاس يې مه پرېږده له لاسه خوله يې واخله
پـــــريـــــو تلی په ياغي راجا قلنګ دی
(٣٤ م ٣١٠ )

(محبوب ) مشبه (ياغي راجا ) مشبه دی ، ( پـه زور څه لاسته راوړل ) يې وجه شبه ده.

که نيولې زر که باز پرېږدي له چنګه
زه بــه هم له لاسه پرېږدم شوخه شنګه
(٣٤ م ٢٣٠ )

لومړی مسره مشبه ده او دويمه مسره مـشبه بـه ده ( هدف لـه لاسـه نـه ورکـول ) يې وجه شبه ده.

همېشه به دې داهسې بنايست نه وي
د ګلــشن ګـــلونـــه نـــه وي تر کالونه
(٣٤ م ٢٤١ )

لومړی مسره مشبه او دويمه مشبه به ده. (نه پايښت يا نـه تلپـاتېو والـی پـه دنيـا کې ) يې وجه شبه ده.

چې پلو له مخه واخلې زه دعا کړم
هر چا زده چې دعا ښه ده د ســحر
(٣٤ م ٥١ )

(مخ ) مشبه او (سحر ) مشبه به دی ، ( خير رسېدل او خوشحالي ) يې وجه شبه ده.

هــــر عمل چې سړی کا مضمر به نشي

درته چاوې چې لوګی مه کړه اوربل کړه
(۳٤ م ۲۸۱ )

لومړی مسره مشبه او دویمه مسره مشبه به ده ، (دراز پټ نه پاتې کېدل ) یې وجه شبه ده.

ب – منځنی تشبیه: هغه تشبیه ده چې پر مشبه او مشبه به سربېره یوازې د تشبیه توري یا وجه شبه پکې راغلې وي (۲٦ م ٥١)

- هغه چې یوازې وجه شبه پکې راغلې وي:

تـــندر هـــم زمـــا لـه ذاته نه پیدا دی
په سپین زړه که د باران سپینې اوبه یم
(۳٤ م ۱۲٥ )

د (شاعر زړه ) مشبه او ( د باران اوبه ) مشبه به دی. سپینوالی د دواړو تر منځ (وجه شبه ) ده.

دلاله غوندې داغدار په جهان راغلم
همـــدا داغ به له جهانه د صنم وړم
(۳٤ م ۱۳٥ )

(شاعر ) مشبه او (لاله ) مشبه به دی ، (داغ لرل ) د دواړو ترمنځ وجه شبه ده.

حـاسدان مې په مثال لکه کلاب دي
حیف نه دی چې به جور د کلاب کښم
(۳٤ م ۱٤۳ )

(حاسدان ) مشبه او (کلاب ) مشبه به دی ، (ځور ) یې وجه شبه ده.

- هغه چې د تشبیه توری پکې راغلی وي او وجه شبه پکې نه وي راغلې:

د دنـــــیا مینه په مـثل د خاربښت ده
هیڅوک نه وینم خالي له دې خاربښته
(۳٤ م ۱۹۷ )

(د دنیا مینه ) مشبه او (خاربښت ) مشبه به دی ، (مثل ) د تشبیه توری دی.

ځای د چپ او راست چې د کافور د پاسه نه دی
تــــــه یې ځه سیالي له تورو زلفو کړې عنبره !
(۳٤ م ۲۱۷)

(تورې زلفې) مشبه او (عنبر) مشبه به دی.(سیالي) یې د تشبیه توری دی.

چـــې هر لورې وته د رومم په غم اوړم
ته به وایې غم یکلخته ښکار زما دی
(۳٤ م ۳۲۱)

(غم) مشبه او (ښکار) مشبه به دی ، (ته به وایې) د تشبیه تور دی.

ج- ادنی تشبیه: هغه تشبیه ده ، چې پر مشبه او مشبه به سربیره وجه شبه او د تشبیه توري پکې راغلي وي ، یعنې د تشبیه ځلور واړه رکنونه پکې په ځرګند ډول راوړل شوي وي. (۲٦ م ٥١)

هـــــم مهره لري هم زهر
ښه مردان په شان د مار
(۳٤ م ٦۷)

(مـردان) مـشبه او (مـار) مـشبه بـه دی ، (لکـه ) یـې د تـشبیه تـوری دی ، همدارنګه (مهره او زهر درلودل) د تشبیه وجه ده.

هم د اوښ غوندې هلک سره په لار ځم
چـې په بده لار مې بیایي مل یې نه یم
(۳٤ م ۱۲٦)

(متکلم) مشبه (اوښ) مشبه به ، (غوندې) د تشبیه توری او (هلک سره په لار تلل) یې وجه شبه ده.

په کوم لوري پسې ځم چېرته یې غواړم
د کیـــمیا غوندې نایاب شول دانایان
(۳٤ م ۱٥۳)

(دانایان) مشبه (کیمیا ) مشبه به (غوندې) د تشبیه توری او (نایاب) یې وجه شبه ده.

بیا د مار غوندې راضي له خپله بخته
چــــې د غـــم له پوسته ووتم یکلخته

(٣٤ م ١٩٥)

(متکلم) مشبه (مار) مشبه به ، (غوندې) د تشبیه توری او (پوستکی اچول) یې وجه شبه ده.

ته لا اوس لکه غونچه په غوړېدو یې
د ښـــایست خبرې لاړې په جهان ستا

(٣٤ م ٣٢)

(مخاطب) مشبه (غونچه) مشبه به (لکه) د تشبیه توری او (ښایست) یې وجه شبه ده.

ته په دا حسن د ګل غوندې زیبا یې
کـــه زو ولې یې له خپله پلاره موره

(٣٤ م ٢١٠)

(مخاطب) مشبه ، (ګل) مشبه به ، (غوندې) د تشبیه توری او (زیبا) یې وجه شبه ده.

لکه ګـــوی هــسې په حکم د چوګان یم
درست وجود پر هار پر هار یم له چوګانه

(٣٤ م ٢٥٣)

(متکلم) مشبه ،(ګوی) مشبه به ، (لکه) د تشبیه توری او (پرهار پرهار وجود) یې وجه مشبه ده.

مخ یې کله د یوسف غوندې زیبا دی
د یوسف تر مــخ یې زیاته زیبا یې ده

(٣٤ م ٢٩٠)

(د غایب مخ) مشبه ، (د یوسف (ع) مخ) مشبه به ، (غوندې) د تشبیه توری او (زیبا یي) یې وجه مشبه ده.

ابـــا سیـــــند وتــه نظر کړه ودرېږه
ستا د عمر د اوبو غوندې چل چل دی

(٣٤ م ٣١٤)

( عمر ) مشبه ، (اوبه ) مشبه به ، ( غوندې ) تشبیه توری او ( **چل چل یعنې تلل تلل** او تېرېدل ) یې وجه شبه ده .

کــــــه هــر څو له زېبا مخه خاطر نیسم
زړه مې بیا په اضطراب لکه سیماب شي
(٣٤ م ٤٠٣ )

(زړه ) مشبه ، ( سیماب ) مشبه به ، ( لکه ) د تشبیه توری او (اضطراب ) یې وجه شبه ده.

کــه مـــې لاس لکه دریاب له دروتش وي
ولې سترګې مې دریاب غوندې دي سېرې
(٣٤ م ٤٣٢ )

( د متکلم لاس ) مشبه ، دریاب مشبه به ، (لکه ) د تشبیه توری او ( له دروتشوالی ) یې وجه شبه ده .

( دمتکلم سترګې ) مشبه ، (دریاب ) مشبه به ، (غوندې ) د تشبیه توری او (سېرې یا مړېښت ) یې وجه شبه ده .

١٠ - د حقیقت له مخې: په دریو ډولوده ( حقیقي ، وهمي او خیالي )

الف - حقیقي تشبیه: دا هغه ډول تشبیه ده ،چې دواړه خواوې ( مشبه اومشبه به ) یې په حقیقي ډول په طبیعت کې موجود وي.

زه چې ستا د وره په تورو خاورو پروت یم
راتــــــه خــــس دي د بخـــملو نهالۍ
(٣٤ م ٤٨٩ )

( دبخملو نهالۍ ) مشبه ، (خس ) مشبه به ، (د ارزښت کموالی ) وجه شبه ده.

د تشبیه توری نه لري ، د بخلمو نهالۍ او خس دواړه په حقیقي بڼه وجود لري.

لکه مــــــــخ زما دیار دی ای باغوانه
په درست باغ کې یو نسرین هسې لرې
(٣٤ م ٤٨٨ )

( ديار مخ ) مشبه ( نسرين ) مشبه به، وجه شبه يې ( ښکلا ) ده ( لکه ) د تشبيه توري ، مخ او نسرين دواړه په طبيعت کې موجود دي.

لکه باز د زړه پـــــه وينو اموخته شو
بل به نه وي هسې ترک په خونخوارۍ کې
(٣٤ م ٤٦٦)

(ترک يا ښکلي ) مشبه ، ( باز ) مشبه به ،( لکه ) د تشبيه توری او (خونخواري) يې وجه شبه ده. (ترک او باز ) دواړه په حقيقي بڼه په طبيعت کې وجود لري.

دواړه شونډې دې ياقوت دي
مـــلغـــلرې پـــه دندان يې
(٣٤ م ٤٦١)

(شونډې او غاښونه) مشبه ،( ياقوت او ملغلرې ) مشبه به ( سوروالی او سپينوالی ) يې وجه شبه ده. شونډې او غاښونه همدارنگه يا قوت او ملغلرې په حقيقي ډول په طبيعت کې شته.

په دا خوی دې اور زما په گوگل بل کړ
زه د شـــمع غوندې ژاړم ته خندا کړې
(٣٤ م ٤٤٦)

( متکلم ) مشبه ، (شمع ) مشبه به (غوندې ) د تشبيه توری ، ( ژړا ) يې وجه شبه ده. متکلم او شمع دواړه په حقيقي بڼه په طبعيت کې شته.

ب–وهمي تشبيه: دا تشبيه د عقلي تشبيه له جملې څخه ده ، د دې تشبيه مشبه به چې يو ناموجود څيز دی له دوو اجزاوو څخه ترکيب شوی وي، چې يو جز يې بهرنی وجود لري او يو يې نلری، لکه د يو شي تشبيه د غول له اواز يا غاښو سره ورکړل شي. (٢٨م ٣٩)

يا لکه د ببو يعنې د بلا غاښونه ، چې ببو او بلا څرگند وجود نلري او غاښونه يې لري. (٢٠م ١١٤)

بلا کاندي خوله وازه د فتنو اتش تازه شي

چې ناز وجلوه دواړه نازنین سره پیوند کا

(۳٤ م ۱۷)

(د نازنین له خوا د ناز او جلوې پیوندول) مشبه ، (د بلا خوله خلاصېدل) مشبه به ، (فتنه او ستونزې پیدا کېدل) یې وجه مشبه ده.

(بلا) څو معنا وې لري چې یوه یې له موږ سره د فارسۍ د غول په معنی ده (خوله) بهرنی وجود لري او بلا یې نلري دلته د (بلا خوله) یو وهمي ترکیب دی ، یعنې څرګند وجود نلري هسې وهم جوړه کړې ده.

دوې دې تـــورې سترګې لکه دوې تورې بلا

دوې دې تورې وروځې لکه دوې تورې تر ملا

(۳٤ م ۱۷)

(دوې دې تورې سترګې) مشبه ، (دوې تورې بلا) مشبه به ، (لکه) د تشبیه توری او (په فتنه او ستونزو کې اخته کېدل) یې وجه شبه ده. (دوې تورې بلا) یو وهمي ترکیب دی چې په څرګند ډول وجود نلري.

چې یې سوری په ما وه لکه بادشاه وم

هــــما یې وه ستا د تورو زلفو سیوره

(۳٤ م ۲۱۰)

په لومړۍ مسره کې (متکلم) مشبه او (بادشاه) مشبه به دی ، د (مرتبې لوړوالی او شان شوکت) یې وجه شبه ده ، چې حقیقي تشبیه ده. مګر په دویمه مسره کې بیا (د تورو زلفو سیوری) مشبه او (همایي) مشبه به دی ، چې (همایي) یو وهمي ترکیب دی.

ج - خیالي تشبیه: خیالي تشبیه د حسي تشبیه له جملې څخه ده، په دې کې مشبه به له دوو کلمو څخه ترکیب شوی وي، چې هره کلمه په یوازې ځان په حقیقي نړۍ کې وجود لري ، خو که چرته په ترکیبي بڼه راشي بیا د هغه څیز ماده په حقیقي نړۍ کې بهرنی وجود نلري ، جلال الدین همایي لیکي:

((در صورتی که اجزا و مواد مشبه به هر کدام به تنهايي وجود خارجی داشته باشند ،ما هئيت مرکب آنها مربوط به توهم و تخيل گوينده باشد ، آن را تشبيه خيالی می گويند.)) (۱۱ م ۲۳۳ )

لکه په فارسۍ کې د (ماهي زرين) ترکيب ، چې ماهي او زر په حقيقي نړۍ کې وجود لري خو ماهي زرين خيالي ترکيب دی يا په پښتو کې (د سرو زرو ونه ) چې (سره او ونه ) په حقيقي نړۍ کې وجود لري خو (د سرو زرو ونه ) يو خيالي ترکيب دی.

محبت بې خدايه واړه که يې ګورې

د دريـــــاب په مخ د خليو پول تړئ

(۳٤ م ٤٩۰ )

(محبت ) مشبه ، (د درياب پر مخ د خليو پول) مشبه به دی ، (عدم يا نشتوالی ) يې وجه شبه ده. (درياب پر مخ د خليو پل) په حقيقي نړۍ کې وجود نلري ، نوځکه يې موږ يو ازې په خيال کې جوړولی شو او په حقيقت پورې تړاو نلري.

کـه د اوسپنو کلا وي چې بخت يار شي

خاوند خدای به يې اسانه لکه شپول کا

(۳٤ م ۱۳ )

(د اوسپنو کلا ) مشبه ، ( شپول ) مشبه به ، (له کلکوالي سره لمنځه تلل ) وجه شبه او (لکه) د تشبيه توری دی. (اوسپنه او کلا ) په څرګند ډول په يوازې توګه په حقيقي نړۍ کې بهرنی وجود لري ، خو د (اوسپنې کلا ) په ترکيبي بڼه يو خيالي انځور دی ، چې په تخييل کې يې جوړولای شو.

عـــــطارد دې نور قلم له لاسه کېږدي

چې په دا خوبۍ بهرام انشاء املا کړه

(۳٤ م ۲۷ )

(د بهرام انشا ) مشبه ، (د عطارد قلم) مشبه به دی. (د انشا ښکلا ) يې وجه شبه ده ، (عطارد او قلم) په يوازې توګه په حقيقي نړۍ کې بهرنی وجود لري، خو د (عطارد په لاس کې د قلم نيول ) يو خيالي انځور دی.

خــوږې شونډې دې په تن آب حيات دي
نوم يې شته لا هېڅوک نه دي پرې خړوب
(٣٤ م ٣٦)

(خوږې شونډې) مشبه، (آب حيات) مشبه به، (لطف او کيفيت) يې چې د عمر د اوږدوالي سبب کېږي وجه شبه ده. (آب او حيات) دواړه، په حقيقي نړۍ کې وجود لري او به د ذات نوم دی او حيات د معنی نوم دی، چې وجود يې په بل ځيز کې محسوسولای شو. خو آب حيات يو خيالي انځور دی.

په دا سرو شونډو يې نه ده وينځه توره
راشـــــه حضر د حيوان په چشمه ګوره
(٣٤ م ٢١٠)

(د سرو شونډو تر څنګ يې توره وينځه (زخه)) مشبه، (د حيوان د چينې په خوا د حضر (ع) (موجوديت) مشبه به، دی. حضر (ع) او د حيوان چشمه دواړه په حقيقي نړۍ کې وجود لري.

حضر (ع) او چشمه د ذات نوم دی او حيوان د معنی نوم دی، چې وجود يې په بل جسم متکي دی خو د حيوان په چشمه د حضر (ع) کښېناستل يو خيالي انځور دی، چې يوازې په تخييل کې يې جوړولای شو.

په بڼو مې زړه وسترګو ته راګــاږي
لکه مست لره کباب ځي په سيخونه
(٣٤ م ٤٢)

(په بڼو مې زړه و سترګو ته راګاږي) مشبه (مست لره په سيخونو کې د کباب تلل) مشبه به دی.

(باڼه، زړه، سترګې، او راکښل) څلور واړه په حقيقي نړۍ کې بهرنی وجود لري، خو په ترکيبي بڼه (د بڼو پواسطه د زړه راکښل د سترګو خواته) يو خيالي انځور دی چې يوازې په تخييل کې يې ليدلای شو او له بهرنۍ نړۍ سره يې کار نشته.

۱۱ – د ابتذال او ندرت له مخې: په دوو ډولوده، نادره او مبتذله:

الف – نادره تشبیه: هغه تشبیه چې په شاعرانو کې رواج ونلري او یا یو شاعر د لومړي ځل لپاره کارولې وي.

د چا زړه لکه کابل د چا بګرام دی
دیـــــــوه نصیب ساړه د بل ګرما

(٣٤ م ٢٥)

(زړه) مشبه ، (کابل او بګرام) مشبه به ، (ساړه او ګرمي) یې وجه شبه ده او (لکه) یې د تشبیه توری دی ، زړه له کابل او بګرام سره تشبیه کول یوازې د خوشحال په کلام کې راغلې ده، ځکه یې نادره ګڼو.

چې مسته په خمار کې د غمزې سمند جولان کړي
لـــــه قتله له کشتنه به هم څوک نیسي جلب ستا

(٣٤ م ٣٣)

(چې مسته په خمار کې د غمزې سمند جولان کړي) په داسې ترکیب راوړو چې په خمار او مستۍ کې غمزې ته د سمند یعنې اس) له حرکته سره تشبیه ورکول د خوشحال په دیوان کې شته او د لومړي ځل لپاره هم په پښتو کې دا ترکیب همده راوړی، ځکه ورته نادره وایو.

طالبان یې د جمال لکه حاجیان دي
چـــــې کعبې لره ورځي په لارو لارو

(٣٤ م ١٦٨)

(د جمال طالبان) مشبه او د کعبې شریفې ته له ګڼو لارو د حاجیانو تلل) مشبه به دی ، چې دا تشبیه هم خوشحال ته ځانګړې ده.

و ښـــه مخ وته له ورایه ځلبلاند شم
لکه ووینې لوغوسی تال په سترګو

(٣٤ م ١٧٩)

(د متکلم ښه مخ ته بې صبره کېدل) مشبه او (د وږ سترګې د خوراک کاسې ته لیدل) هم په پښتو شاعرۍ کې د خوشحال نوښت دی.
یادونه: یوه تشبیه تر هغه وخته نادره ده ، چې د لومړي ځل لپاره یې څوک و کاروي کله چې نور وهم عین تشبیه وکاروله بیا د مبتذلې په ډله کې دربږي.

ب- مبتذله تشبیه: هغه تشبیه چې د لومړي ځل لپاره کوم شاعر وکارول‌ه که هر ډول وي دې ته نادره وایي، خو کله چې یې بیا نور شاعران کاروي مبتذله شي ، لکه مخ له ګل ، لمر ، سپوږمۍ ، برق او... سره یا زلفې له مار ، ښامار ، سنبل ، زنځیر .... او دې ته ورته تشبیه ګانې، چې په شاعرانو کې ډېرې عامې او زیاتې کارول کېږي.

وریــــي واچول د زلفو زنځیرونه
که هر ګز اموخته نه و په تړل زړه
(۳٤ م ۲۷۱ )

(زلفې ) مشبه او ( زنځیرونه ) مشبه به ( تړل ) وجه شبه ، د زلفو او زنځیرونو تشبیه ډېره عامه ده ځکه یې مبتذله ګڼو.

چې یې ګل د بهار ستا و مخ ته وینو
ســــتا د مخ خوبي تر ګلو لا زېبا ده
(۳٤ م ۲۸۰ )

(مخ ) مشبه ، (ګل) مشبه به ، (زېبایي ) وجه شبه ، د مخ او ګل تشبیه هم ډېری شاعران تر نن ورځې راوړي.

لکه مــــخ زما دیار دی نمر خو هسې وي که نه
لکه زه په عشق کې زرد یم زر خو هسې وي کنه
(۳٤ م ۲۹۵ )

(مخ ) مشبه ،(لمر ) مشبه به ، ( ځلېدل ) وجه شبه. د مخ او لمر تشبیه هم ډېره عامه او حتی په خبرو اترو کې هم کارول کېږي.

وروځې دې لیندې دي تور بانه دې تېره غشي
ولــــه !صرفه مه کړه ، چې دې ډکه ده درسته
(۳٤ م ۳۰٤ )

(وروځې ) مشبه ، (لیندې ) مشبه به ، ( توربانه ) مشبه او (غشي ) مشبه به ، چې دا تشبیه هم ډېره عامه ده. نو ځکه یې مبتذله تشبیه بولي.

۱۲ –د شرط او نه شرط له مخې: په دوه ډوله ده ، مشروطه او نا مشروطه تشبیه:

الف مشروطه تشبیه: هغه تشبیه ده چې د مشبه او مشبه به تر منځ یې وجه شبه په یوه شرط سره تړل شوې وي چې د شرط ویيکې (ادات) (که) هم ورسره راغلی وي.

تــــه دلبره که غذرا یې زه وامق یم
ستا په مینه کې هر ګوره موافق یم
(٣٤ م ١١٤)

(مخاطب) مشبه ، (عذرا) مشبه به ، (متکلم) مشبه او (وامق) مشبه به دی. متکلم ځان له وامق سره تشبیه کړی. خو شرط یې د خپلې محبوبې عذرا کېدل راوړې دي ، هغې ته وایي که ته عذرا یې زه وامق یم که ته عذرا نه یې نو زه وامق نه یم.

ته مــحبوبه که شیرینه ددې وخت یې
زه خوشحال د اوسني دور کوهکن یم
(٣٤ م ١٢٤)

(مخاطب) مشبه (او شیرینه) مشبه به دی ، همدرانګه (متکلم) مشبه او (فرهاد چې دلته یې صفت کوهکن راغلی) مشبه به دی ، دلته بیا خپلې محبوبې ته د شرط په راوړلو یعنې که ته ددې دور شیرینه یې نو زه هم ددې دور فرهاد یم. وجه شبه یې په مینه کې زیاددښت او د هر شرط پوره کول دي.

که ته لکه لیلا یې ما مجنون بوله په عشق کې
که ته لکه عذرا یې زه هم کم تر وامــــــق نه یم
(٣٤ م ١٣١)

(مخاطب) مشبه ، (لیلا) مشبه به ، (متکلم) مشبه (مجنون) مشبه به ، همدرانګه (مخاطب ته) مشبه (عذرا) مشبه به او (متکلم) مشبه ، (وامق) مشبه به دی، چې په دواړو تشبیه ګانو کې متکلم خپل مجنون کېدل او وامق کېدل په محبوبې پورې د شرط په بڼه راوړې دي.

په چارم اسمان به ناست لکه عیسی وم
کـــــــه اســـــــمان ته الواته شو په خبرو
(٣٤ م ١٧٩)

(متکلم) مشبه ، (عیسی) مشبه به ، (لکه) د تشبیه توری ، (پورته تګ یا درجه لوړېدل) یې وجه شبه ده ، دلته له عیسی (ع) سره درجې او پورته تګ لپاره شرط (خبرې)

راوړي يعني که په خبرو الوته وای ما سره داسې خبرې شته، چې د هغو په وجه به د عیسی(ع) غونډې په ځلورم اسمان کې ناست وای.

د مينکو ګل قندي به يې خوشحال ترې صدقه کا
کـــــه ته مې سرفراز کړې په دشنام په ورځ و شپه
(٣٤ م ٢٩٦)

( دشنام ) مشبه ، ( د مينکو ګل قندي ) مشبه به ، وجه شبه يې (ارزښت ) دی دلته د مشبه او مشبه به ترمنځ تشبېه د ( که ته مې سرفراز کړې په دشنام په ورځ و شپه ) سره د شرط په بڼه راغلی دی.

له خپل يار سره دوزخ زما قبول دی
که بې ياره جـنت مومم نار زما دی
(٣٤ م ٣٢١)

(جنت ) مشبه ، (نار ) مشبه به دی. خو شرط يې بې له ياره يوازې والی دی ( سختي او شفقت ) يې وجه شبه ده.

چاويـــــــل د کښلو جنګ لکه اشتي ده
تل يې ما سره اشتي ده که په جنګ شي
(٣٤ م ٣٩١)

( د کښلو جنګ ) مشبه ، ( اشتي ) مشبه به ، دلته يې جنګ له اشتۍ سره غبرګ د مشبه به په بڼه د شرط له مخې راوړې ده.

که قدم دې د وفا په لار کې ټينګ کړ
د خـــــوشحال په پوهه داده رستمي
(٣٤ م ٣٩٢)

(دوفا په لاره قدم ايښودل ) مشبه ، (رستمي ) مشبه به ، دلته د رستمۍ لپاره د وفا پر لار قدم ايښودل د شرط په بڼه راغلې ده.

زور لـــــرې کـــــه عـــــقل پـه دا دواړه مه نازېږه
بخت راوړه خوشحاله ! چې دې کار لکه سر زر شي
(٣٤ م ٣٩٩)

دلته د کار د سره زر کېدو لپاره بخت د شرط په بڼه راغلی دی.

ب- نا مشروطه تشبېه:

که چرته د مشبه او مشبه به تر منځ اړیکه په کوم شرط پورې تړل شوې نه وي نامشروطه تشبېه ورته وایي ، دلته یې دوې بېلګې د لاڅرګندونې لپاره راوړو.

د خوشحال زړه په تقوی کې لکه غر و
ستا پــــه مینه یکباره شو د وړی
(۳٤ م ٤۹۰)

دلته د تقوی له مخې د خوشحال زړه په کلکوالي کې د غره غوندې دی او په مینه کې بیا د وړی غوندې سپک دی.

د خوشحال ویل په نورو کې څرګند دي
لکــــه رېغ د ویـره ژلي په ګڼ ویر کې
(۳٤ م ٤۸۹)

(د خوشحال ویل) مشبه ، (د ویرژلي رېغ) مشبه به ، (له ډېره درده چیغې وهل) یې وجه شبه ده او (لکه) یې د تشبېه توری دی.

۱۳ –د مقبولوالي او مردودو والي له مخې:

الف– مقبوله تشبېه: هر شاعر یا لیکوال یو شی له بل شي سره د څه خاص غرض لپاره ورته کوي ،که چرته د شاعر غرض په پوره ډول پکې څرګند او لاس ته راغلی وي مقبوله ورته وایي (١٤ م ٢٢)

ب– مردوده: که چرته د شاعر غرض په کومه تشبېه کې په سم ډول لاسته راغلی نه وي مردوده ورته وایي یا د مشبه او مشبه به ترمنځ ګډ صفتونه دقیق نه وي.

تــــا پانې پانې زلفې په جبین کرلي دي
جانان مې په سینه کې لونګین کرلي دي
(حفیظ الله کامه وال ۱۳۸۷ل)

په پورته بيت کې زلفو ته له پاڼو سره تشبيه ورکړل شوې ده، چې نامناسبه ده ځکه پاڼې پلنې او شنې وي خو زلفې تورې او نرۍ وي ، بلـه دا چې پـاڼې کـرل کيږي نه، بلکې شنې کيږي.

په دويمه مسره کې لونګين نا مناسبه راغلی دی ځکه چې لـونګين ځونډی دی چې دا هم نـه کـرل کيږي ، بلکې لونـګ کـرل کيږي او بلـه دا چې رديف ورسره ناپخلا دی يعنې د جمع په بڼه راغلی دی که لونګين راشي نو (کرل) پـه (کرلـي دي ) په بڼه نه د (کرلی دی ) په بڼه بدليږي.

وړانديزونه

د خوشحال خان ختک ادبي اړخ کـه نثـر دی کـه نظم د بحر پـه ډول لـه ډېرو قيمتي فني کاڼو څخه ډک دی هيله ده په راتلونکي کې يې ادبي کره کتـونکي پـرې خپله څېړنه وکړي.

د نوموړي پر اثارو چې څومره کار شوی دا کم دی نور کار تـه هم اړتيا لـري. د مجاز په اړه هم دده ديوان پوره مالامال دی هيله ده، چې په دې اړه هم ديـو څړنيـز اثـر په ډول څيړنه وشي او راڅرګند شي.

په پای کې دا وړانديز هم کوم چې ددې اثر (دخوشحال پـه غزلـو کـې د تـشبيه ډولونه ) د چاپ لپاره دې زمينه برابره شي ، چې محصلان او د ادب لارويان ترې ګټه واخلي.

مناقشه

کومه څېړنه چې ( د خوشحال خان ختک په غزلو کې د تشبيه ډولونه ) پـه اړه شوې د تشبيه په هغو ټولو خواوو پکې رڼا اچول شوې او بېلګې يې پـه څرګنـد ډول راوړل شوي چې په عربي ، دري ، اردو او پښتو ژبو کې د نوموړي علـم پوهـانو پـه خپلو اثارو کې راوړې دي. همدارنګه په دې اثر کې په هغو تشبيه ګانو سربېره چې د نـورو پـښتو اثـارود ليکوالـو لـه لارې يـې پـښتو ادب تـه لار مونـدلې وه ، ځينـې نظرونه په پښتو ژبه کې د نوښت پـه بڼـه راوړل شـوي او لـه هغـو نظرونـو سـره سـمې بېلګې ورته د خوشحال خان ختک په غزلو کې غوره شوي دي.

د تشبيه په اړه چې په عمومي بڼه کـوم اثـار ليکـل شـوي د تـاليف بڼـه لـري او اکثـره برخـې لکـه د تـشبيه زاويـه ، د وجـه شـبه ډولـونـه لکـه ( تحقيقـي وجـه شـبه ، تخييلي وجه شبه ،دوې ګونې وجه شبه، مفرده وجه شبه، متعدده وجـه شـبه، مرکبـه

وجه شبه او عقلي وجه شبه ) همدارنګه د اضافي موکدې تشبيه په برخه کې سمبوليکي اضافت ، تلميحي اضافت او تشبيهي اضافت پکې نه دي راوړل شوي ، چې په دې اثر کې پوره بحث پرې شوی دی.

دې اثر يو بل نوبت د تمثيلي ، غير تمثيلي او مرکبې تشبيه توپيرول دي ، چې په نورو پښتو اثارو کې مرکبه او تمثيلي تشبيه يو شان ګڼل شوې ده.

ددې اثر يو بل غوره والی دادی ، چې د تشبيه د دواړو خواوو (مشبه او مشبه به) اړوند د مجرد بسيط مشبه او مشبه به ، مقيد بسيط مشبه او مشبه او همدارنګه مرکب مشبه او مشبه به توپير په څرګند او روانه ژبه شوی دی او بيا يې د خوشحال خان ختک له غزلو څخه کره بېلګې وړاندې شوي دي.

د تشبيه د تورو په اړوند هغه ټولې کره بېلګې راوړل شوي دي، چې د خوشحال خان خټک په غزلو کې په کار وړل شوي دي ، چې په دې کې عربي ، دري او پښتو ته منسوب ټول توري شامل دي.

په دې اثر کې د تشبيه د رکنونو د راوړو له مخې د تشبيه اعلی ، منځنۍ او ادنی بڼې راوړل شوي دي ، چې د شاعرانو لپاره يوه ښه لارښوونه ده .

د تشبيه هر ډول تر بېل عنوان لاندې شرحه شوی دی. دا چې په يوه بيت کې د تشبيه په اړه له بېلا بېلو اړخونو څخه بېلا بېلې څرګندونې راتلای شي ، چې په دې سره بيا اصلي هدف ګونګ او پټ پاتې کېږي او همدارنګه اثر له تکراري نظرونو او جملو څخه د پنډوالي لوړ حد ته رسېږي، نو د بې ځايه پنډېدو او هم د کره او مطلوب نظر د ورکېدو د مخنيوي لپاره د تشبيه تر هر عنوان لاندې مشخص بيت او د هماغه عنوان موضوع په څرګند ډول راوړل شوې ده ، مثلاً که خبره د موکدې تشبيه ده يوازې د همدې وضاحت شوی دی ، که موضوع د تشبيه د تورو ده ، نو يوازې په بيتونو کې توري په نښه شوي دي.

پر پورتنيو موضوعګانو سربېره په نوموړي اثر کې د پيل خبرې، سريزه، د خوشحال خان خټک لنډ ژوند ليک د هغه اثار او د شعر پر محتوی يې لنډه رڼا اچول شوې ده .

ځينې هغه موضوعګانې ، چې په راتلونکي کې بايد د خوشحال خان په منظومو اثارو کې ولټول شي ما په وړانديزونو کې په کلي ډول راوړي دي.

د خوشحال خان خټک اثار د روان بحر په څېر دي هیله ده وخت پر وخت نوي قیمتي کاڼي ترې د ادب غواصان راوباسي.
پایله
د خوشحال خان خټک په کلام کې د تشبیه هغه ټول ډولونه شته، چې په عربي ، اردو او پارسۍ کې کارول شوي دي. زما د څېړنې له مخې تقریباً د خوشحال خان خټک د غزلو په (۲۱۵۰) بیتونو کې رنګارنګ تشبیه ګانې راغلې دي.
دا چې خوشحال خان خټک پښتو ژبه له ګاونډیو ژبو سره سیالوله ،نو ځکه یې ډېری تشبیه ګانې پخپله پښتو ژبه کې نادرې دي، که څه هم مبتذلې تشبیه ګانې به یکې راغلې وي ، خو د هغو د بیان طرز بیا نوی او په بل ډول دی.
نو موړی د تشبیه په کارولو او باریکیو پوره پوهېده، نو ځکه یې په غزلو کې یوه داسې تشبیه نشته ،چې موږ یې د قبیحې یا مردودې تشبیه بېلګه کړو یا یې د عیبجنې تشبیه په ډول راوړو.
د نوموړي په کلام کې نور فني اړخونه هم شته چې راسپړل غواړي بله خبره دا ده، چې کله هم خپله معشوقه له کوم عاشقانه کردار سره تشبیه کوي نو ځان هم د هغه کردار له نارینه څخه کم نه ګڼي ، مثلاً که معشوقه یې له لیلا یا عذرا سره تشبیه کړه نو ځان هم تر مجنون او وامق کم نه ګڼي. دده د کلام یوه ځانګړنه داده چې په هغه وخت کې هیڅا هم ښځینه جنس په شاعرۍ کې نه راوړو خو ده په ډېر جرات سره ښځینه خوا په ښځینه صیغه د تشبیه په بڼه راوړې ده.

که نیولې زرکه باز پرېږدي له چنګه
زه به هم له لاسه پرېږدم شوخه شنګه
(۳٤ م ۲۳۰)

کله چې یې پښتو شعر له فارسۍ سره پرتله کوو ،نو څرګندېږي چې په فارسۍ ژبه کې هم لوی لاس لري. تر ډېره ځایه هغه تشبیه ګانې چې په را وروستو کې مبتذلې شوې دي ، ده په نادره بڼه راوړي دي. د نوموړي په کلام کې د ادنی تشبیه بېلګې کمې دي. د منځنۍ تشبیه شمېر یې په اندازه دی ، خو اعلی تشبیه ګانې یې ډېرې کارولې دي.

د نوموړي تخييل په تشبيه راوړلو کې ډېر ژور دی ، په تشبيه راوړلو کې له پوره جرات څخه کار اخلي که خبره يې په ځان پورې وي او که په بل چا پورې د تشبيه په راوړلو کې يې بيا که هر ډول وي ډيل او ځنډ نه کوي.

د خوشحال خان تشبيه کارونې د نورو شاعرانو لپاره لارې پرانستې دي.

د تشبيه د تورو په کارونه کې يې عربي ، فارسي او د پښتو ژبې توري کارولي دي ، تر ډېره ځايه يې کوښښ کړی دی ، چې د پښتو ژبې د تشبيه توري په بشپړه توګه وکاروي.

په پای کې بايد ووايم چې د خوشحال خان ختک کلام له ډېرو نادرو فني لالونو څخه ډک دی بويه چې د ادب د لارې هر غواص يې تل ته ورسي او موږ ته يې را په ګوته کړي.

## ماخذونه


۱ –احمد نژاد ، کامل. (۱۳۸۲ خ). فنون ادبي. تهران: انتشارات پایان. چاپ چهارم.

۲ –اند ، اجمل. ( ۱۳۸۵ ل ) . هینداري او چینې . پېښور: دانش خپروندویه ټولنه .

۳ –بدر شو ، سمندر . (۱۹۵۸ ع) د ادب مناره . پېښور: یونیورستي بک ایجنسي .

٤ –بېنوا ، عبدالروف . (۱۳۲٦ل) . ادبي فنون. کابل: پښتو ټولنه .

٥ –پنهان ، حاجي فضل محمد . (۱۳۸۳ل) . ادبي ارمغان. قندهار : هېواد کلتوري او ادبي ټولنه .

٦ –پرهر ، بشیر احمد . (۱۳۸٥ ل ) . ستا د مخ په آیینه کې. ننګرهار: د ختیځې سیمې لیکوالو او ژورنالستانو خپلواکه ټولنه.

۷– پښتو ټولنه.( ۱۳٤٥ل) . ننګیالی پښتون.(د خوشحال خان خټک د ۲۸٦ تلین د مقالومجموعه) کابل: پښتو ټولنه.

۸ –د هخدا ، علي اکبر . (۱۳۷۷ خ ) . لغت نامه د هخدا . تهران: موسسه انتشارات و چاپ دانشگاه تهران. جلد پنجم. چاپ دوم.

۹–هاشمي ، السید احمد .( ۱۳٦۹ ). جواهر البلاغة فی المعانی والبیان والبدیع. قم: المصطفوی. الرابعة.

۱۰ - هېواد مل ، زلمی. (۱۳۸۰ل ) ننګیالی د زمانې. جرمني: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه .

۱۱ - همایي ، جلال الدین.( ۱۳۷۰ خ ) . فنون بلاغت وصناعات ادبي. تهران: موسسه نشر هما . چاپ هفتم.

۱۲ –زیار ، مجاور احمد. ( ۱۳۸۲ ل ) . پښتو پښویه. پېښور : دانش خپروندویه ټولنه دویم چاپ. دانش خپرندویه ټولنه.

۱۳ –طائر، محمد نواز.(۱۹۸۲ع ) روهي ادب. پېښور: پښتو اکېډیمي پېښور یونیورستي دویم چاپ.

۱٤ - یوسفزی ، مشتاق مجروح. (۱۹۹۸ع ) . زرکاڼی. پېښور: تاج کتبخانه.

۱۵ – کاکا خېل ، سید تسنیم الحق .(۱۹۸۷ ع ) . روح ادب . پېښور: پښتو اکیډیمي پېښور یونیورستي . دویم چاپ.

۱٦ – کاکړ ، پیر محمد . (۱۳۸۵ل ) . د پیر محمد کاکړ دیوان. پېښور : تقوی کتابخانه. دویم چاپ.

۱۷ – کدکني، محمد رضا شفیعي. ( ۱۳٦۸ ل ) .صور خیال در شعر فارسي. کابل: انتشارات وزارت اطلاعات و کلتور (ج-ا ).

۱۸ - کشاف ، قیام الدین. ( ۱۳۸۵ل ) . قران کریم ټکي په ټکي ژباړه. کابل: د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د بیهقي کتاب خپرولو موسسه.

۱۹ - ملنګ جان ، محمد امین. (۱۳٤۸ ل ) . خوږې نغمې. کابل: پښتو ټولنه.

۲۰ - مسلم دوست،عبدالرحیم. (۱۳۷۹ ل ) . خوږه ژبه. پېښور: سبا کتابتون.

۲۱ - مقدم ، محمد علوی و اشرفزاده ، رضا .(۱۳۸٤ خ ) . معانی و بیان. تهران: سازمان مطالعه و تدوین کتب علوم انسانی دانشگاهها (سمت ) . چاپ ششم

۲۲ – ناګار ، فضل ولي. ( ۱۳۸۲ ل ) .دا هغه با لا حصار دی. پېښور: احسان خپرندویه ټولنه.

۲۳ - عبد الرحمن. ( ۱۳۸٤ ل ) . د رحمان بابا کلیات. پېښور: دانش خپرندویه ټولنه.

۲٤ – علي خان. ( ۱۹۸۸ع ) دیوان علي خان. پېښور : پښتو اکیډیمي پېښور یونیورستي. دویم چاپ.

۲۵ – فاروقي ، محمد طاهر.(۱۹۵۹ ع ) . فصاحت و بلاغت. پېښور: یونیورستي بک ایجنسي.

۲٦ – قویم ، عبدالقیوم. (د چاپ نېټه نه لري ) . فنون ادبي. کابل: انتشارات پوهنتون.

۲۷ – رښتین ، صدیق الله. (۱۳۷۲ ل ) . پښتو ګرامر . پېښور: یونیورستي بک ایجنسي .

۲۸ - شمیسا ، سیروس. (۱۳۸۳ خ ). بیان و معاني .تهران: انتشارات فردوس. چاپ هفتم.

۲۹ – خټک ، اقبال نسیم.(۱۹۸۷ ع ) . خوشحال او جمالیات. پېښور: پښتو اکیډیمي .

۳۰ - خټک، عبدالقادر. ( ۱۳٦۸ل ) . د عبدالقادر خټک دیوان. کابل :د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو مرکز. پښتو ټولنه.

۳۱ - ختټک ،راج ولي شاه. (۱۹۸۹ع ). پښتو ادبي تحریکونه. پېښور: .پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي.

۳۲ – ختټک ، خوشحال خان. (۲۰۰۱ع). ارمغان خوشحال. پېښور: یونیورسټي بک ایجنسي. دویم چاپ.

۳۳ – ختټک ، خوشحال خان. ( د چاپ نېټه نه لري ) . دیوان خوشحال خان ختټک (اوله حصه). پېښور: اداره ثقافت صوبه سرحد .

۳٤ – ختټک ، خوشحال خان. (۱۳۵۸ ل ) . د خوشحال خان ختټک کلیات (لومړی ټوک ). کابل: د افغانستان علومو اکاډمي.

۳۵ – ختټک ، خوشحال خان. (۱۳۸٤ل ) . د خوشحال خان ختټک کلیات. پېښور: دانش خپرندویه ټولنه.

۳٦ – ختټک ، خوشحال خان. (۱۹٦۰ع ). کلیات خوشحال خان ختټک. پېښور: اداره اشاعت سرحد .

۳۷ - غني خان. (۲۰۰۵ ع ). لټون. پېښور: یونیورسټي بک ایجنسي.